**اشعار:** دی پردیسی او بیلتون که له یوی خوا د شیدا حساس روح نا قراره کړی ؤ او په دی لاره لی ئی ډیر روحی تکلیفونه ولیدل، خو له بلی خوا د پښتو ژبی خیر په دی کی ؤ، چه د کاظم خان روح له همداسی ربړ و سره مخامخ شی او د یاد وطنه ایری د وطن او د وطن د یارانو په غم کښی و نو لیږی.

که د کاظم خان حساس روح دی غمونو او پردیسی په شور راوستلی نه وای، نو خدای شته یو هیڅوی چه د پښتو ژبی بهٔ داسی گرانبها اشعار او داسی نامتو او دردمند شاعر په برخه شوی وای که نه؟!

«شیدا» درست په لادوا در دونوړك دی
ماچه بیر ته لکه زخم ستا دیوان کړ

حقیقتاً چه شیدا د پښتو ژبی ډیر نازک خیال او په عین حال کی دردمند شاعر دی او دده خوندور اشعار د پښتو ژبی گینه او زیور بالهشی، او د نازک خیالی په فن کی د لحینو نویو استعارو او تشبیهاتو او اصطلاحاتو مؤجد دی. او دده د سخنگو ئی د تعریف د پاره هم دده دا بیت صادق دی چه وائی:

دسوسن ژبه حیرت کړه سر مه سایه
چه «شیدا» په دا بهار کی سخن گوی شو

د شیدا د پخنگی او نازک خیالی مثال یو بیت یادوه بیته نشی کید لای بلکه د سخن شناس په نظر کی بهٔ دده ټول دیوان مثال وی لکه دی چه پخپله وائی:

«شیدا» زه ئی منتخب د پښتو بولم — که دیوان دی مرتب دی په څو فرده:

خو بیا هم بهٔ د لته په نمونه کښی دده دوه دری بیتونه راوړو و مثلاً سبادی د غنچی خوله غوړیږی او د گل بوی او رنگ چه د غنچی په زړه کی پټ وؤ بهر وزی تاسی وگوری چه شیدا دا حالت په څه خوږ و او شاعرانه الفاظو کی ادا کوی، وائی:

د غنچی در باط وریه وا که دودی
قافله د رنگ و بو د روه ی سباشو

په دی لاندی بیت کی حسن تلازم و اولیء:

مهیا ورته قفس د شاخ گل کړه
که څه رحم په بلبل کوي صیاده!

یا دی حسن تشبیه ته ځیر شیء چه وائی:

په گلگون سرښك می رنگ لکه غنچه کړ
هسه جوړ شوم د گریوان و دریدن ته

**دخان ستاینه:** شیدا سره له دې چه په شعري دنیا کې ځان دنوي طرز موجد ګڼي او ځان داختصاص سزاوار بولي (۱) بیا هم دخوشحال خان خټک د استادۍ او شاعرۍ لوړ مقام ته په دې ډول داحترام سر ټیټوي .

د پښتو شعر معلوم ؤ — په معنی کې کا لمعدوم ؤ
چه قلم په لاس د «خان» شو — مرتب ئې لوی دیوان شو
تصانیف ئې فراوان شول — مستند د درست افغان شول
سلاست د عبارت هم — لطافت د اشارت هم
ډېر دقت د معانی هم — بلکه خود همه دانی هم
په کلام کې ئې ظاهره — په اقدام کې ئې باهره
سلیقه ئې کړه عیانه — طریقه ئې کړه بیانه
هر شاعر چه د افغان دی — ریزه چین دخان دخوان دی
فی المثل که بل مهتاب وی — مستفید ددې آفتاب وی
چه پرغرونو شي لارصافه — قافله درومي تر قافه
چه وی بل په دریا باندی — څوک به غم د شنا کاندی
ما چه دا کلام ادا کړ — نوی طرز می را پیدا کړ
په پښتو کې ګویا خاص یم — سزا وار د اختصاص یم
له حسده که صاف زړه کړي — په دا کار کې انصاف وکړي
«خان» ممتاز د تمام «روه» دی — بلې استاذ ددې ګروه دی
په میدان د استاذۍ — همعنان د برق تازۍ
«سرای» مطلع ددې آفتاب دی — په عالم ئې هر ځای تاب دی

بل ځای دخوشحال خان شرف په ادبی دنیا کې پرخپل ځان ثابت بولي، وایي :

د افغان له شعرا په شیدا باندی
دادب په مقتضی د «خان» شرف دی

شیدا په دې عقیده دی چه که خان ژوندی وی هغه به هم دده کلام ته د پښتو په ادب کې لومړۍ درجه مقام ورکړی وای، دی وایي :

---

(۱) دی بلځای وایي :

ما چه دا کلام ادا کړ — نوی طرز می را پیدا کړ
په پښتو کښې ګویا خاص یم — سزا وار داختصاص یم

مگر د سخن ناشناس او حاسد او ناپوه څخه زیات گله مند او په ویره کی دی چه نه چه
دده لعلونو ته د ډبرو په نظر وگوري او دده هر هنر په نا مرغوب شکل وښیي نو ځکه وایي:

گله مندیم له حاسده — چه متاع کاندي کاسده
انگبین سکنجبین کا — په مزه ئې ترش جبین کا
وایی خس و کهکشان ته — سنگ و لعل بدخشان ته
د حاسد دخل بې ځایه — صفائی یو سی له رایه
په هراس یم له ناپوهه — قوی طبع کاستوهه
چه نظر ئې په اشعار شي — هر یو شعر خوار وزار شي
نامرغوب ئې هر هنر کا — په عیوب ئې معتبر کا
چه مزاق ئې د وا ښه وی — ورته خس ترحلوا ښه وی

بل ځای سخن ناشناس او کج بحث ته له سره د قضاوت حق نه ور کوي او که ئې تحسین
هم وکړي نه پرې خوشالیږي اونه ئې اعتراض ته اهمیت ور کوي وایي:

وو ایه دار ننگ مغه نشناس ته — یعني کج بحث او جهل الناس ته
ستا اعتراض و تحسین دی لغو — پریږده خبره سخن شناس ته

**ادبی اعتراض:** ځینو پوهانو په د شیدا پر کلام دا اعتراض کاوه چه په عبارانو کی
ځینی غرایب او عجایب لری کاظم خان دد ې اعتراض دا سی جواب کوی:

که نکات می عجایب وی — عبارات می غرایب وی
خاص په حسن د کلام وی — د معنی دقت ئې عام وی
خالی نه وی له صنعته — عاری نه وی له رفعته
په لوسته ئې ابتهاج کړه — آفرین می په مزاج کړه

مگر د پښتو او سنی لیکوال او پوهان سره له دې چه شیدا د پښتو «بیدل» (۱) بولی او
د پښتو په نزاره ادب کی ورته په لوړ مقام قایل دی، یو بل وډو کی اعتراض د شیدا پر کلام
لری او هغه دا چه دده په کلام کی د عربی ژبی الفاظ او د فارسی ژبی ادبی عبارات او
اصطلاحات له ضرورت نه زیات ډېر دی نورنو لکه دی چه پخپله وایی دده اشعار «له نقصانه
مبرا دی» او ښایی چه دا کار ئې هم د کلام د خوزوالی دپاره کړی وی .

---

(۱) حضرت بیدل د فارسی ژبی مشهور نازک خیال، فلسفی اونکته دان شاعر دی .

د ناز که خیالي د یاره ئې همدا بیت کافي دی چه وایي :

زما زړه ئې کله رانیو ستا له زلفو
که هر څو ئې شانې تل وکړه مروندونه

کاظم خان په خپله یوه مثنوي کې چه د دې دیوان په سر کې هم چاپ شوې ده د خپلو اشعارو خوراښه تشخیص او تعریف کړی دی چه که د اته د هغه مثنوي څو بیتونه د مثال په توګه راوړو نو ویونکي به د ده له شعر او طبع سره لږ ښه غوندې آشنا شي او هم به د ده خیالات د ده د شعر په باب کې لږ ښه ورڅني څرګند شي، دی او مړی د خپلې طبع او خپل شعر ستاینه کوي وایي :

په پښتو کې ګویا خاص یم — سزاوار د اختصاص یم
داپ مې کله د فضول دی — په طامات کله محمول دی
څه زما چه قیل و قال دی — خو د زما په کمال دال دی
هنر نه دی چه ځان ستایم — که په فن کې بې همتایم
مناسب د تقریر دا شوه — چه مې طبع خو دستا شوه
سخنور که توتیان ډېر دی — کله د وی ځما په څېر دی
چه ادا شیرین نفس کړم — نیشکر چوب د قفس کړم
چه لب وا لکه صدف کړم — ډک په دُرو هر طرف کړم
د ارنګین خیال مې په کښلو — قلم ښاخ کا د سرو ګلو
تر آفتاب مې روشن رای دی — تر فلک رفعت ګرای دی
چه قاصد د تیر فهم شي — فلک خم په تواضع شي
لا تر نمره انور بریښي — ورته سترګه د نمر بریښي
معاني مې پېر غرا دی — له نقصانه مبرا دي
همګي صافي رنګیني — لکه آب د یاقوت ویني
هر مضمون مې طبع زاد دی — کل زما د رای ایجاد دی
نه غلط نه مبتذل دی — توارد ئې محتمل دی

خو سره له دې له ډېرې ستاینې بیا هم د ادبي فنونو له ماهرانو او سخن شناسانو څخه هیله کوي چه د ده اشعارو ته د لطف په نظر وګوري او که کوم ځای سهو راغلی وي هغه اصلاح کړي او دا د هغوی له خوا لوی احسان بولي لکه چه وایي :

چه ماهر روی په دا فن کې — هم ماهر په دا سخن کې
مقاصد ئې د منصف وي — نه حاسد نه متعسف وي

تــر هغه مــی سلام پــو سه | ورســره داکلام پــوسه
ورتــه ووایــه تیــز هو شه | د دا ســخن نیــو شــه
په اشعار می نظر وکړه | واړه‌په‌وار پرې گـذرو کړه
که واقع پکښې خطاوی . | توجه دی ورته ستا وی
ته ئې جوړ لفظ ومضمون کړه | ماپه دا احسان ممنون کړه
خــطا کــېږي لــه بشره | خــصو صــا لـه‌سخــنوره
کــه کلام دا نوری و ی | چــه مــدام سخنوری و ی
لــه خطا کـله خـالي وی | هر مضمون کله عالي وی

سره له دي چه سخن شناسانو او دفن ما هرانوته داصلاح حق ورکوی بلــکه د هغوی اصلاح دځان په حق کی یو دول احسان گڼی . بیاهم دخپلو اشعارو له ویونکو څخه یو ه بله هیله هم لري او هغه داچه ډوی باید دشیدا اشعارو ته‌په سرسری نظرونه گوری اوخه قدر ئې په تأمل او دقت سره ولولی ځکه چه دده دځینو اشعار مفهوم او ادبی خو ند په سرسری نظرنه څرگندېږی‌نو و ابی :

چه تعجیل کـاندی په‌لو ستو | ور ته پوشی‌ړاندی‌ورو ستو
که خوانده که‌ناخوانده وی | په همه کــی‌وامانــده وی
افاده ده کــه الفاظ دی | مقتضی دډېــر لحاظ د ی
چه نــازك دچـا خیـال وی | هم بلند لــکه هــلال وی
تأمل پکښې ضــرور شي | لغه پسه پــری مر ور شي
که صحرا گـل‌وگـلزار وی | آ هسته خرام په کـار وی
په خرام کــی نـنداره شي | رنـگا رنـگ‌بهارښکاره‌شي
که جولان‌په خیابـان کړي | خیابـان به بیـابا ن کړی

بل ځای په څه شاعرانه الفاظو کی دا مطلب ادا کوی چه وا یی :

کړه ئې وا لکه گره دتورو ز لفو
باریکی لری تما م دیوان زمـا

بیا وا بی :

غوږ کړه وماته که درست ا نصاف یې | نه مدعــی یی نه‌سخن بــاف یــی
باریــك ترمــوی دی دشــیدا شعر | هــله‌ئي لوله که مــوشگـاف یې

❀ ❀ ❀

چه پهلاس د «خان» قلم ؤ — قلمرو ئې دا عالم ؤ
هغه وخت که دا سواد وی — په کاغذ بویه چه صادوې

بلکه امکان ئې درلود چه شیدا ته ئې «دشاعرانو میر» یا په ننني اصطلاح ملك الشعرآ
ویلی وای ، لکه چه پخپله وایی :

شیدا «خان» به دې کامیر دشاعرانو
که مزار و ته ئې عرض دتا انشاشی

**ورشاعران** — کاظم خان شیدا دپښتو پهشاعرانو کی برسېره پرخپل خاندان شپږو
تنونوروته هم پهشاعری قایل دی ، چه هغه رحمان بابا ، حمید بابا
شوکت ،میرزا ،دولت واصل ،دی.درحمان بابا اوحمیدبابا ، په باب کی وایی :

په دا وخت کی که شیدا دواړه مومندوی
ئنا خوان به وو هر دم ستا په ویلو

بل ځای وایی :

چه مومند و قیل وقال کړ
یعنی دوی سحر حلال کړ

درحمان بابا یوی مصرع خوئی زده هم ودی دی چه وایی :

نن رحمان په دا مصرع دشیدا زده ودی
«ته پری یې که آهو یې که جادو کړی»

درحمان بابا دبلی غزلی په جواب کی وایی :

درحمان ددې غزل جواب شیدا کړ
«غره ماوسه دعشق په کاروبار کښې»

دشوکت نامی شاعر ډیر صفت کوی اودهغه داشعارو په ستاینه کی ئې یوه غزل ویلی ده
چه هغه دا ده (۱) :

راشه واوره دشوکت هره مصرع — درست غزل ئې منتخب الی المقطع
چه نظر ئې په شفق د رنګینی کړم — هر کلام ئې په مثال حسن مطلع

[۱] ماته معلوم نشو چه داشوکت څوك دی ؟ اوایا حقیقة دپښتو شاعردی که دفارسی ؟
خوشیدا ستایلی دی .
مګر په فارسی کی دشوکت په نامه څوشاعران تیر شوی دی .

کره ئے والکه کره دتو روزلفو
باریکی لری تمام دیوان حمسا
شیدا،

65

# د
# کاظم خان شیدا
## دیوان




مدون ، مصحح او مقابله کوونکی

عبدالرؤف «بینوا»

پښتو ټولنه ۱۳۳۱ کابل

بلندي ئې دا شعار فلک سیاره — دېر وین په دود ئې نظم مرصع

په کمال ئې دخیال نثر دستور یو — څه معنی چه معانقه وي مسجع

تعجب به په دا باب هر ګوره وکړم — که رسمي کلام ئې نه وي مصنع

رسیده ئې ومضمون ته شیدا ګران دی

چه رفیع لکه آسمان دی بل ارفع

خپله کورنۍ او میرزاء دولت او واصل داسې یادوي:

په دا هو نبره پښتنو کې — بیا په ژبه د پښتو کې

په دا فن کې څو اشخاص دي — ډېر د موږ خاندان خاص دي

یو میرزاء دولت، واصل هم — ښه کلام لري حاصل هم

او هغه څوک چه شهرت نه لري دهغوي په باب کې وایي:

هر هغه چه نامشهور دي — جوړ په داب او په دستور دي

دا ویل په احتمال کړم — احتمال ئې د کمال کړم

خو ددې نه علاوه دخپل وخت نورو نمایشي او جعلي شاعرانو ته په ښه سترګه نه ګوري او هغوي دا شعارو عارګڼي، وایي:

د پښتو شعر ذلیل شو — دهر چا قول دلیل شو

هر قبایل پرې اقدام وکا — په دا فن کې کلام وکا

چه په لافو دا شمار دی — په معنی دا شعار عار دی

ناواقف د سلیقې دی — نابلد د طریقې دی

دهر وزن منافي دی — څه خبر په قوافي دی

عندلیب وایي وځان ته — راشئ داز یبا بستان ته

نشیمن ئې دارنګ باغ شي — هم آهنګ دسیاه زاغ شي

ګل پریشان کاله آهنګه — بیا غنچه کاندي دلتنګه

ba

**بل کاظم خان**

دشیدا په وخت کې یو بل کاظم خان هم دشیدا په مسقط الرأس «سرای» کښې شاعر تېر شوی دی، خو څنګه چه هغه چندان مشهور نه و دهغه څینې شعرونه هم شیدا ته منسوب بېدل، نو ځکه شیدا دخپل دیوان په مقدمه کې دا مطلب څرګندوي او لیکي:

«دا شخص هم نام زما ساکن دسرای چها کوډې هم ورته ویلې شي ددا خاندان و، شاید په تاثیر دصحبت ئې کم و بیش ربه په دسخنوری ... ئې نها د خاطر کړه، او لسان دحال ئې یا قدر

داستعداد په ایجاد دمضامین مترنم و- ازانجمله خوغزلیات په غایت ونهایت شهرت کښې دی،
او په محافل ومجالس کښې زبان زد دغزلخوانانو دیوغزل دامطلع دی :

وبه مرمه ای عالمه په ارمان دتو رو زلفو ❀ کله به را ور سی در مان دتورو زلفو

لیکن نامبرده چندان معروف اومشهور نهٔ ، په واسطه داشتراك اسمی دهغه اشعار په نزد
دکافهٔ عامه وماته منسوب دی، حال آنکه ځما له اشعارو ځما اسم مصرح نه دی، دامعنی په تخلص
مشرح شوې ده اوهم معرفت دمتکلم په سیاق دکلام متفرع دی او شناسائی دقایل په داب
دقول کښې مودع ؛ دا نکته و کامل عیارته روشن ده او دقیقه ددې کار و دانش شعارته
مبرهن ؛ چه دا اضافت وماته خطادی او نسبت بیجا .... [۱] »

په دی ترتیب شیدا دهغه بل کاظم خان داشعارو نسبت ځان ته خطابولی خودومری شوه
په دی لیکنه کښې ئې دپښتو دادب په تاریخ کی دیوه بل شاعر نوم ښودلی دی چه هغه ده
همنامی کاظم خان دی .

**اجتماعیات:** شیدا یوازی دگل اوبلبل اوشاعرانه تخیلاتو شاعر نه دی بلکه دخیالو شاعرانه
تخیلاتو سره ډیری گټوری اجتماعی نکتې هم اری چه هغه په اجتماعی ژوند کښې
دانسان د کامیابۍ او سر لوړ ی سبب گرزېدای شی او د بشر ی سعادت د پاره خورا
ضروری گڼلی کېږی ځکه نوموننږ دلته دده داجتماعی افکار و څو لنډی نمونی راوړو ؛

**صلح کل:** شیدا دبشر درهنمایانو اوفلاسفه وپه پیروی دصلح کل طرفدار دی او دانسان
داجتماعی سعادت اساس پر صلح کل باندی بنا بولی او په دې عقیده دی چه
انسانان باید پخپل منځ کی بې له کوم فرقه بودبل سره په صلح اوآرامی کی ژوندو کړی،
دی وا یی :

ځای د روغ دلېونی شه کـه هو ښیا ریې
صلح کل د ځـان پیشه لکه صحرا کړه

بل ځای خپل دافکر په داسی الفاظو کی څرگند وی :

منا سبت ارم ز ه له هر چا سره      پست یم له پست سره ، بالا بالا سره
په مثال رنـگ یم دحنا گـوره      زیب کړم له دست سره، جوړ یم له پا سره

هرچا ته په ورین تندی کتل دصلح کل مهم رکن دی، نوځکه شیدا وا یی :

شگفته کړه لـکه نمر جبین هر چـا ته
چه په تله دې سیه پو ش تما م جها ن شی



---

[۱] ددې دیوان هغی مقدمې ته دې مراجعه وشی چه شیدا پخپله لیکلې ده.

**تعاون او همدردي:** شیدا په اجتماعي ژوند کی دهرانسان دا انساني فرض گڼي چه دبل انسان سره تعاون او همدردي واري اود خوارانو او بې وزلو دلداری اودخدای دمخلوق خدمت وکړي . دی دبل دخدمت داسي توصیه کوي :

همیشه د بل په کار کې قدم سایه
جاریده تر خپل همت لکه آسیا کړه

شیدا دانسان کامیابي په جمعیت کی همدنورو په خدمت پوری تړلې بولي چه وایي :

افروخته یي وي محفل په شان د شمع
چه سوخته دبل په کار کي خپل دماغ کا

له همدې امله شیدا دخپلو اجتماعي وظایفو په لړکی دبې وزلانو دلداري دځان دپاره یوه مهمه وظیفه گڼلې ده چه وايي :

دلداري دنا توانو ځما عادت دی
بار په درش وړی دهرخس طوفان ځما

بل ځای خپل دامطلب په شاعرانه الفاظو کی څرگند وی :

دلداري لکه غنچه د هر شبنم کړم
تل دبل په او ښو تر ځما آستین دی

یا داچه :

دلداري کړه غنچه وار د بېدستانو    پاکېزه دشبنم اوښي په آستین کړه

حتی شیدا دبل ساتنه دځان ساتنه بولي اودبل خدمت کول دځان خدمت کول گڼي دی وايي :

تل دبل پاسبان دخپل صورت پاسبان وی
حلقه وگوره په دا تر ځان چاپیره

دشیدا په عقیده دنورو احترام دانسان دلوړتوالي سبب نه گرځي لکه چه وايي :

کم به نشي لکه غر که په لویی کښي
وتعظیم ته ایستاده دخاص وعام شي

**۳- لوړ همت** لوړهمت چه دباعزمو اورښتینو انسانانو ستر خوی دی او خصوصاً دپښتنو دپاره دپښتنوالي مهم رکن گڼل کيږي ، نو ځکه دشیدا په کلام کښي له هرڅه نه دلوړ همت تأثرات ډیرلیدل کیږي اودده دانساني اولوالعزمي او حقیقي پښتنوالي نمایندگي کوي . شیدا لومړی لهخپله خدایه په یوه مناجات کښي ددی انساني او پښتني ستر خوی هیله داسي څرگندوي :

چه خپل برگ ئې په آب د چرخ نه کړم سرسبزه
د همت علو په شان د کهکشان را

دا وړ همت له اجزا ؤ شخه یو جز و هم «اعتماد بنفس» یعنې پر ځان باور اول دی ؟
داځکه چه باعزمه انسانان تل په اجتماعي ژوند کښې پر خپل ځان او خپل مت تکیه کوي
او د خپل ژوند دیر سپك بار هم د بل پراوږو نه ږدي ، او نه د بل په واسطه ځان اوړوي .
دا مطلب شیدا په څه شاعرانه او په عین حال د پښتني عزم نه ډکو الفاظو کښې ادا کوي ،
چه وایي :

د آفتاب په کمند نه په ځېژم آسمان ته
نه ږدم بار لکه شبنم په دوش د گلو

داسې ځیرشيء د شیدا اعتماد بنفس داسې حد ته رسېدلی دی چه که د شبنم غوندې
یو سپك بار هم د بل پراوږو راځي دی د آسمان په ختلو هم خوښ او راضي نه دی .
همدا شان شیدا له بل نه سوال کول او څه غوښتل د اوړ همت ضره منافي گڼي او حتی
نه غواړي چه له سیند نه هم خپل جام ډك کړي . وایي :

که دی جام لکه حباب و نه نیو سیند ته
آفرین دی په همت شیدا ځه یکه !

بل ځاې چه د لمر قرص ته گوري چه د پوڅي شکل اري نو له حیانه خوله وربانه دی
ماتی شي ، لکه چه وایي :

په صورت مې شي خولې له حیاماتې
چه ونان ته د آفتاب څه خو نظر کړم

له سوال کره نه یوازې شیدا بیزاره دی بلکه دده په قول نور عالم هم ورځني ستر گې پټوي !
نه صورت نې عالم چشم پوشي کا
چه او گي غوندې ولاړ په هر دې گدان دی

شیدا دا وړ همت خاوندان دې ته اړ نه بولي چه د چا احسان په ځان واخلي او دلمر د ستر گې
اوړوالی له همدې جهته بولي چه د بېو د سیوري احسان وربانډې نشته لکه چه وایي :

د همت علو د غیر احسان څه کا
د بېو سایه په ستر گه د نمر نشته

65

او په هغه لیځ او برېښنا سر آفرین وایي چه دستار او افسر ته ئې شوی نه وي :

آ فرین د هغه سر په عــر یــا نیه
چه فرو نشو د ستار و یا افسر تــه

دبل دباغ ترسیوري ئې دځپل مات د یوا ل سیوري خوښ دی ، او د وریځې دسور ی
احسان لاهم پرځان نه منی ـ وایي :

ماسایه دباغ بدله په سایه دمات دیوا ر کړه
ځپل همت ته تاروزی شه د ر و مه ابر دریا دله

دانسا نانو ترمنځ اخـــلاقي ګرمي او حرارت او یو دبل سره د جذا بیت قوه درلــو دل
داجتماعي ژوند له ضرور یــا تو څخه ګڼل کیږي .نوځکه شیدا چه داوږ همت خاوندانسان دی
په ګـرم روی بـاندی داسي شیدا دی :

چه په شان د آفتاب نه ده ګـــرم رویه
ستاپه سر که په سا یه د هما خو ښ یم
تر هغــه چه خشك طـینت دساحل و ینم
لکه موج آوار ه په دریـا خــو ښ یم

او له سرد جوشي څخه داسي بېزاره د ی :

تر هــغه چه سرد جـــوشي دحنـاویــنم
خوښ په طور دسمك بـــی دست وپـا یم

دعلوهمت بل ضروري جزو دمشکلاتو او سختیو زغم او تحمل دی چه لوړهمتي انسان
باید دژوند په ربړ و کی ځان ونه بایلي او په ورین تندی دسختیو مقابله وکړي . نوځــکه
شیدا وایي :

ددوران په لګد کوب کښې جبین وا کړه
په همت کې ځان همسر د نقش پـا کړ ه

او ځپله حوصله باید ددریاب په څېر لویه وساتي چــه دهر راز مشکـــلاتو خس ا و
خاشاك یوړی شي لکه شیدا چه و ایي :

بــار دهرخس وخـاشاك پځپل ګرد ن وړه
حو صله دې په مثـال دلوی دریـا کړه

او هم دی وایي :چه همتنـاك خلق دساحل غوندی دهر سیلاب په مخ کی ثابت ولاړ وی
او دحوادثو هیڅ سیلاب ددوي عزم متزلزل کولای نشي . چې وایي :

په صدمه به ئې دسيل يو قدم بې ځايه نشي
دثبات طورچه زده کړ همتنا کو له ساحله

دخپلې سنګينۍ او متانت مثال چه په اصل کې دده دلوړ همت مثال دی پـه داسې شاعرانه الفاظو کې بيانوي :

له آسمانه به فی الحال راشي ټر ځمکې
که می کېږدی سنګيني چيري په تلو (۱)

او کوم وخت چه ئې خپل جام له لمره (۲) ډك وی نوځان د فلك همپياله ګڼي او په جرئت سره وايـي :

چه شيشه مې خالي نشوه له آفتا به [۲]
پـه دابـزم دفـلك همپيالـه يـم

## ٤-سخاوت

شيدا په اجتماعي ژوند کې دبېنې اوسخا طرفدار او د حرص، بـخل او شو متياڅخه بېزار دی سخي سړی هغه بولي چه دسايل سوال ته انتظار ونه باسي ، لکه چه وايي :

زر افشان لـکه آفتـاب شه بې مطلبه
شيدا سوال ته دسايل انتـظـار مکړه

شيدا کريم سړی د پسرلي ښېنې ته ملتفت کـوی چه څنګه خپل ټول بـرګـ و بار خزان ته وړاندی کوی، نو کريم سړی ته همدا تو صيه کوی :

برګ وبـار ورته پيشکش لکه بهار کړه
که خزان راشي کـريمه ستـاتر کوره

شيدا سخاوت او ښېنه دهمتنا کو خلقو کـار بولي او په دې لاره کې دومره انتهاپسند

---

[۱] تلی په آ سمان کې دمخصوصو ستورو نوم دی .
[۲] له ـ دپښتو په زاړه ادب کې کـنا يتاً «دشرابو» په معنی راغلی لکه دابيت :
دبېلتون په تاريکو کې مې زړه شين شو رڼا لمرد جام د مـيو پـه ظـلام را
«محمد هوتك ـ پټه خزانه ۲۰۱مخ»
[۳] آفتاب دفارسی په ادب کې د شرابو په معنی راغلی ـ لکه چه وايي :
مغان که دانهٔ انګور آب می‌سازد ستا ره می شکنند آفتاب مـی سا زد

# په دې کتاب کښې


١ — پيژندگلوي

٢ — مقدمه (پخپله د شيدا پقلم)

٣ — ثنا او مناجات

٤ — ديښتو د شعر حسب حال

٥ — غزليات

٦ — رباعيات

٧ — مخمسات

٨ — قصائد

٩ — منقبات

١٠ — قطعات

١١ — متفرقات

دي‌چه د سړیه ښندنه‌هم پر و اد ار نه دی ، اوددار لرګی ئې هم نه پ ېر زو ګ ېنړی‌چه دهمتناك سړی نه‌محروم پاته شي ، وا یی :

چری نه چه دار محروم په میدان پر ینږ دي
ک ه یوسر په تن لر ی بلـ ند همته !

البته‌داد ښندنی آخرین مقام دی چه شیدا ور ته لوړ همتی انسانان رابولی اوهم‌پخپله ددم لوړ همت ورځنی خو ګند پنږ ی .

**٥ ـ امساك:** شیدا امساك او ممسك ته‌په بد ه ستر ګه ګو ری ا و د هغه‌تیتې ژوند داسی بیانوی :

چه ممسکان کاسیم وزر جمـ ع به صرف ئې ژاړ ي مانند دشمع
که ئې په سیم وی کاسه‌لبریز ه له غیـ ره کا ـدی دزرو طمع

بلځای‌شوم سړی ته‌اه‌دي جهة خانه‌خراب وا یی چه‌هرځه‌لری خوبیاهم له‌لوږی بې‌تابه‌دی دی وا یی :

آب ودانـ ه اري شرمه حبابه نس دې‌خالی دی جوع کړي بې‌تابه
تله ئې له تـانه په تعجیل و ینم ولی‌ئې نه‌خوری خانـ ه خرابـ ه !

په‌آخر کی ممسك‌سړی تهدیدوی اودامساك نتیجه اوانجام‌ورته داسی بیانوی :

سنګ وچوب به په سر و خوری لکه ونه
چه ممسك نه خوری داخپـ ل ثمر لـ ذ یذ

**٦ ـ حرص:** حریص انسان دهغه‌لهـ سر ګردانه ژوندڅخه داسی‌خبروی :

ک ه مسخر کړي دوه سو جهانه کله‌بـ ه موړ شي وزیه انسانـ ه
که ئې خالی کړه غـ له دانو نه آسیا هنوز ده کاسه کـ ر دانـ ه

**٧ ـ بخل:** بخل‌ته‌هم په‌بدنظر ګوری اودبخیل‌سړی له‌دودی‌ څخه‌بیزاردی‌لکه چه وا یی :

په‌مسکه ئـ ې شیـ دا مشه لـ قمه تـ ره
چه جبین‌ئې مدام ترش په‌شان ددوغ دی

**٨ ـ رښتیا:** شیدا په‌اجتماعی ژوند کی‌درښتیااورشتنیوانسانانو طرفدار دی دی‌وایی :

چه‌دې مخ لـ که دصبح صادق سپین وی
په‌هر کار کښی له عالم سره رشتیا کړه

Ca

٩ ـــ وفا: دملګري په لاره کې که هرڅه مشکلات پیداشي شیدا دوفاملګري دی اوبل ته همداتوصیه کوي :

سایه وار متحمل د سنګ وخارشه

چه په لار درفاقت دروم‌ــي وفا کړه

بل ځای دوفا په سبب پرخار باندی داسی مین دی چه وایی :

چه له ښاخ سره وفا کا په سره اور کښی

لا تر ګله یم مین د ګل په خارزه

١٠ ـ وعدة: دوعدي پرځای کولو په لاره کی شیدا ترسر هم تیردی اودا درشتینو مردانو خوی ګڼی لکه چه وایی ،

که ئې سرځی لکه شمع یك زبان وی

خلاف نه کا دخپل قول چه مردان دی

١١ ـ تواضع: شیدا سره له هغې لوړ دماغي چه ځان دفلك همپیاله ګڼي اود آفتاب په کمند آسمان ته نه خېژي بیاهم دتواضع طرفدار اووایی :

مروت که په سرځای دنشست راکا

سر فرو په تواضع کړم تر کاکلو

ګردن فرازانوته دتواضع توصیه دارنګ کوی :

په هرآن کی پرپوتل دی لرزان اوسه

تواضع په اوج دموج غوندی پیدا کړه

١٢ ـ قناعت: پخپل لږ څیز قانع کیدل دشیدا مسلك دی اونوروته هم دداسی قناعت توصیه کوي :

دعزلت په شبستان کی قانع اوسه — خپلی ستر ګی دی چراغ لکه عنقا کړه

که سایه دمات دیوار لری نادانه — پخپل زعم کی ئې سیوری د هما کړه

بل ځای وائی : خیالات به دخطا دختن نکړی

که خاقان شي د کهنه جامي په چین کښی

١٣ ـ رازساتنه: درازساتل هم داجتماعي ژوند لهضروریاتوڅخه دی ،نوځکه شیدا وایي :

درنیا په شب روی دشمع سرځی

شیدا همه اخله پرده له خفیه رازه

**۱٤ـ احسان پېژندنه:** شیدا داحسان شناسی داسې توصیه کوی :

ددستار په شان ئې تــل ترسر جار پېژه
هرسړی چه په تندی کېږدی ستابار

**۱٥ـ میړنی:** دحقیقي مردانو اومېړونو اوصاف داسې بیانوي :

مردان هغه دی چه شرم ونـنگ لري | کشاده چنگ رای و فرهنګ لري
په بزم ورزم، بانــدی چه راشی | دتوتی ژبه، زړه دپلنګ لري

**۱٦ـ نامرد:** دشیدا په نزد نامرد سړی که هرڅو لوړی بنګلې واری بیا هم دنیکو په دله کې شماردی لکه چه وایي :

نـامرد که هرڅو رفیع مکان لري | زر لکه شمس مطبع جهان لري
کـه هیڅ نشان ئې دتأثیث نشتــه | د مؤ نث سماعــی شــان لري

بل ځای وایي :

ستر کې نه سو ځی دخس له نـا مر دانو
کـه همه لکه اپر ې آ تــش نسب وی

**۱۷ـ ویل او کول** شیدا یوازی دویلو طرفدار نه دی بلکه دی له ګفتار سره کردار هم لازم ګڼی اووایي :

په ګفتار بـــه انسان نشی کردار بو یه
تو تی کله شوانستان په خوشخوانی کی

**۱۸ـ طلب** شیدا په اجتماعي ژ وند کې طلب اوسعي د کامیابی مهم اساس بولی اودامطلب په داسې شاعرانه تخیل کې څر ګند وی :

حــر کت نـکړي لـه خپله ځایــه | لـه مـاهی زده کړه طلب خود رایه
که په کنیې مات شي هزارخاروبــه | په سینه څکېږه بې دست وپـا یه

بل ځای په اجتما عی ژوند کې دتیپدلو درس داسې ور کوی :

چه راحت دز څخه ستړی ستو مان مومی
خپل صورت دی لکه سیوری دبېدیا کړه

دژوند په مشکلاتو کې هم بـاید سړ ی له طلب نه لاس وانخلي ، شیدا وايي :

دطلب په لار ا فتا ن وخیـزا ن درو مه
که دې لاروی لکه موج په سیلاب کښې [۱]

مقصد ته درسېدو وسیله همدا طلب او کوشش گڼي چه وا یی :

گوندی ورسی کنـار تـه لا هو مو جه
دست وپا وهه مدام پـه دا در یا کښې

## ۱۹ــ ظلم

شیدا دظلم دښمن دی او دظالم پـای خراب بولی لکه چه وا یی :

په فنـا د خس وخـار تـفـدم شعله مری
دمظلوم پـه مرگ هـلاك اهل ستم شی

بل ځای دظلم انجام داسی ښیی :

پـه صورت ئې لگی اورلـه خپله تفـه
چـه ظالم ځی لکه برق تحت الثری تـه

دمظلومـانو له ژړا څخه داسی بیم خر گند وی :

شیدا بیم کوه هردم لـه ترو ستـر گو
عـاقبت شی تند سیلاب دسحاب څاڅـکی

## ۲۰ــ جاه وجلال

ظا هری جاه وجلا دشیدا پـه نظر کی سخت لـ و ی غـم دی ، نو ځکه وایی :

که فردتـاج وشکوه دتخت نه وی — وقت مساعد ومد د دبخت نه وی
وا ده راحـت دی زمـا پـه پـوهه — غم به ترجاه وترجلال سخت نه وی

تردې ځایه پوری دشیدا اجتماعی افکـاروخولنډ لنډ مثالونه راوړل شول چه لـه هغو څخه ویونکو ته دا خر گندېږی چه شیدا یوازی دادبی تخیلاتو اواستعاراتو یا په اصطلاح دگـل اوبلبل شا عر نه ؤ بلکه دی داجتماعی اخلا قو مبلغ هم و .

## دیوان ــ

دکاظم خان شیدا دیوان لکه دی چه پخپله ددیوان په مقدمه کی لیکی په یوزر یوسل اویو اتیا [۱۱۸۱ هجری] کـال له ترتیبه خلاص شوی دی [۱] ده پخپله دخپل دیوان دترتیب تاریخ په دې قطعه کی داسی خر گند کړی دی :

---

[۱] خوشحال خان هم وایی :

نرمطلوبه پوری شرط درسېدو دی — که تمام لارې په وینوشی آلو ده

[۱] ددې دیوان مقد مې ته دی ر جو ع وشی ، چه دشیدا پقـلم لیکـلې شو ې ده .

ت

ایکی پوازې د «ر،ح،س، د،ن،ت، ترتورولاندې یوهمزه «؟» ایکی چه دادخوشحال خان خټك اختراع وه نوځکه دانسخه یوخاص اهمیت لري. خوله بده مرغه دانسخه مکمله نه ده، دسر اوپای اومنځ پاڼې ئې نیمګړې دي مګر بیا هم غنیمت نسخه دد اوده پښتوټولنې د کتبخانې مال دی.

۳ـ دمولانا ابوالوفا صاحب نسخه، یوه نسخه په ۱۳۲۵ هـ کال په پښاور کښې دا کبرپوري دعبدالمستعان کاتب په خط نقل شوې وه، چه له هغې نه بیا په ۱۳٤۰ هـ ق کال مولانا ابوالوفاصاحب په قندهار کې یوه نسخه نقل کړې ده اوبیا له هغې نه دانسخه په ۱۳۱۵ هـ ش کال حبیبي دخان دپاره استنساخ کړې وه زماسره دا درې سره نسخې وې او په دقت مې سره مقابله کړې چه ځای په ځای مې په حاشیه د نسخو اختلاف هم ښودلی دی او په مخصوصو اشاروې مې ښې کړې دي.

مخصوصې اشارې: ۱ـ اس ـ داسلامیې کالج د نسخې مخفف دی. ۲ـ پ ـ د پښتوټولنې د نسخې مخفف دی ۳ د حبیبي د نسخې مخفف دی.

پای: دا وه د کاظم خان شیدا پر ژوند او کلام لنډه تبصره نو ز نو د ده د یوان ویونکوته حاضر دی چه دده د کلام نور مزایا پکښې په خپله وګوري.

(عبدالرؤف «بینوا»)

ـــــــــــــــ

# دشیدا پیژندګلوی

کاظم خان شیدا دپښتو دمشهورلیکوونکی افضل خان زوی٬
او دپښتو دنامتو شاعر اشرف خان هجری نمسی او دپښتو
دنومیالی پلار خوشحال خان ختک کړوسی دی.

د[۱۱٤۰ه=۱۷۲۷ع] کال پهشاوخوا کښی [۱] دپښتونستان دختکو دعلاقی د[سرای]
په «افضل آباد» مقام کی زیږیدلی دی [۲]

دده نیکونه اوپلرونه برسیره پردیچه پوهان اوادیبان خلق تیرشوی دی پهخپل خپل
وخت کی دقوم مشران هم وو.

څهوخت چه دده پلار افضل خان وفات شو٬ نودقوم دمشرتوب واګی دده مشر ورور
اسدالله خان پلاس کی واخیستلی؛ خوځنګهچه اسدالله خان ډیر تندخوی سړی ؤ٬ نودخپلو
ورونو اوخپلوانو سرهئی خوراسخته اوناوړه رویه چلوله. کههرڅو کاظم خان ورته وویل:

ګرداب وګوره د رباب حلقه بګوش کا
هیڅ تحقیر د صغیر مکوه کبیر ه!

اوپا کهئی هرڅو دلویانو اومشرانو خو یونوته ملتفت کاوه چه:

دزړی په احوال تل د نمر نظروی٬
لوی به نه ګوری واړه پهسترګه سپکه

خواسدالله خان له خپلی سخت ګیری اوتند خویی څخه لاس نهاخیست نو ځکه دده
او کاظم خان ترمنځ دفکر اونظر اختلاف پیداشو٬ اودي اختلاف د کاظم خان حساس
ماغزه ناآرامه کړل.

---

[۱] Catalgue of the Marathi, Gujrathi, Bengali and Pushto ۲۲مخ

[۲] دمهجوری پهوخت کښی افضل آبادته داسی سلامونه لیږی:

| | |
|---|---|
| نسیمه ورشه د «سرای» سوادته | له هغه پسه «افضل آباد» ته |
| سلامی وکړه په دوادو لاسو | درود یوار٬ ګل و شمشاد ته |

له یوی خوائی دخپل مشرورور سره مقابله کول ونه بلل اوله بل پلوه ئی دهغه سخت گیری او تندخوئی زغملای نشوه، نودائی سره وگڼله چه وطن پرېږدی او دپښتنی اصطلاح سره سم چه وائی:

«وطن پرېښی سه دی، نه ورور وژلی»

دخپل پلار په خیرله وطنه مهجور شو، اوله خپلوانوئی امید قطع کړ:

ددریا له سر دجوشه دحباب زړه چوی
«شیدا» قطع دامید بویه له خپلو

لکه پخپله چه ددیوان په مقدمه کی لیکی په عنفوان شباب کی ئی استراحت

**پردیسی:** دحضر په محنت دسفر مبدل شو [۱] له کلی او کهول څخه آواره شو، او کورئی دحباب په شان دزمانی سیلاب پراوزو اخیستی گرزاوه، پخپله وائی:

دسیلاب په دوش روان لکه حباب شوی
ای زما کوره زما آواره تر یی

څو کاله ئی په کشمیر کی دشرقی علومو په زده کړه تیر کړل: او بیائی څه زمانه په «سرهند» کښی تیره کړه، څو په پای کی ئی د «رامپور» دپښتنو سره رابطه ومونده هلته ولاړ او دخپل ژوند زیاته برخه ئی دمرینی ترو ختته پوری په رامپور کی تیره کړه: خو هر ځای چه وُ دخپلی آواره گی او جگرخونی سوی چیغی ئی په شاعرانه ژبه وهلی دی:

آواره لکه آفتاب په بحر و بریم | درته څه وایم چه څه سوخته اختریم
هیڅ خبر په سایقه دپرواز نشوم | لکه گل په آشیانه کی ریخته پریم
کدورت می دصفا په سیقل ورك شو | په داچا که سینه خونبن لکه سحریم
هر گردش په جگرخون کړم «شیدا» ځکه | نن له خپله زیسته سیور لکه ساغریم

او دزمانی دبی تمیزی اوبی غوری څخه ئی داسی شکوه کوله:

زمانه په رعایت دگیاو خس ده | پرورش دعلف زار بویه باغبانه
د کوری نیل دی پوری په دیده کړ | بصارت دتمیز نه لری آسمانه
آخر وژاړدی به شام دغریبانو | که هر څو دوطن صبح ده خندانه

---

[۱] ددی کتاب هغی مقدمی ته دی رجوع وشی چه دشیدا په قلم لیکلی شوی ده.

**دوطن یاد:** سره له‌دی چه ټولو دربدریو، ځګرخونیو او آوارګیو بیاهم تل دوطن په یاد کی تپیده او دوطن په یاد به‌ئې خپل غمجن روح ته تسلی او دادینه ورکوله او ویل به‌ئې:

په‌زړه می ګرزی دغرو نوښوکی — حملی دبازو دزرکو کوکی
ووایه څه کا د «روه» نسیمه! — ګیرا منګولی زیبا مښوکی

بل ځای دصبا بمادته منت کوی:

چه ګذر وکړی صباد «سرای» په لوری
آواره بلبل ئې یاد په ګل زمین کړه

کله چه دهند دسبزانو حسن وینی دخپل وطن دګلر خانو ښکلا وریاده شی او هغه‌ته پرخپل راتګ خپله پښیمانی داسی څرګندوی:

سبزان کله وی همسر د ګلر خانو
بیهوده راغی «شیدا» تر هند و باره

بل وخت چه دخپل وطن دښکلیو توری ستر ګی په‌هند کی نه‌وینی نووایی:

یکښی نشته سیه مست د هغو ستر ګو
ګر زید لی په درست هند په بنګا له یم

بیا چه دهنددسبزانو په‌یانو سری شونډی وینی نود «روه» دغرونودزر کو په‌یاد کی‌وایی:

چه‌دهند سبزو، خوږلی پان وی — لعل ویاقوت ئې دواړه لبا ن وی
زرکی چه‌ګرزي د «روه» په‌غرونو — ښایسته روغی په دغه شان وی

بل ځای چه دهند دسبزانو مصنوعی غرور او ساختګی غنج اوادا ګوری نودخپل وطن ساده او بی تکلفه خوبانی وریادی شی، وایی:

غره بی ځایه د هند سبزا نی دی — غنج و ادا لری که‌دلستانی دی
چه دلبری کا بی تکلفه — د «روه» په‌ملك کی ساده‌خوبانی‌دی

دوطن یاد چه ډیر زور پرو کړی نو دهند بی‌شماره طاوسان دخپل وطن ترسیسیو جاروی:

زارشه تری هونبره طاؤسان زانی — لکه دو نو بیشما ره یانی
د «روه» سیسی دی طر فه دلبری — نشته په‌هند کی داهسی سکانی

دخپلی مهجوری، اوجلا وطنی، اوغریبی مثال په څه ښښتنی تخیل کی څرګندوی:

چه‌له آشیانه زرکه بد ر نه وه — له کو هستانه ډیل په در نه‌وه
ور با ندی تل وه دخندا صبحه — د غریبی په شام خبر نه وه

بسم الله الرحمن الرحيم

بخپله د شیدا په قلم

# مقدمه

راقم ددې صحیفې محمد کاظم ؛ شیدا تخلص ، ختهك نسب ، حنفی مذهب نقشبندی مشرب (غفر الله تعالی ذنوبه وستر عیوبه) په عرض دسخن شناس روشن قیاس رسوی ـ هرچند په نزد دخردمند ، شان دسخن رفیع و بلند دی:

بیت

آب بود معنی روشن غنی خوب اگر بسته شود گوهر است

او اهل ددې فن عزیز و ارجمند :

بیت

ازسخن مارا دماغ دیگر است چو صدف مغز سر ما گوهر است

لیکن زه چه په دکان کښې دشاعرۍ قلیل البضاعت یم او ایوار دزبان آورۍ زرنگار دصناعت نلرم . خپل مناسبت فطری له دې شیوې سره په محل دقصور کښې موهم او موانست جبلی له دې و تیر په مراحل دور تر ، باوجود آن په عنفوان الشباب کښې می استراحت دحضر په محنت دسفر مبدل شه ، اوالی آن می په شام دغربت صبح دوطن مالوفه طالع نه دی انواع دمحن دلشکن چه لازمه دسفر ومنافی دراحت وفراغت دی ، لاحقه دخاطر فاطر :

فرد

مدتی شد چون قلم درمشق سر گردانیم تاچه آرد برسرم آخر خط پیشانیم

بالجمله په کلبه دجدایۍ او په زاویه دتنهایۍ کښې چه مصداق ددې مضمون یم :

فرد

دل می تپد و نیست کسی دادرس ما    از قافله دور است خروش جرس ما (۱)

با آنکه خواهش دهسی دولت لرم چه حلاوت یاب دانز واشم اوحاصل ددي قیل وقال مطابق لحما دحال دی :

فرد

آئینه ام از نور نظر میکشد آزار    تاعاقبت کار من ازهم نفسان چیست

بل میر الله خان اوجهانه وم او بهره منده دي شان و نشانه (۲)

ابیات

فکنده است جنونم بمشق کینهٔ خویش

بلوح سنگ کشم نقش آبگینهٔ خویش

* * *

زبس شکسته دلم اب بخنده وا نکنم

نمونهٔ جرس بیدلم صدا نکنم

ز آشنائی مردم چنان گریزانم

که چشم بر رخ آئینه نیز وا نکنم

تسکین دخاطر شکسته وخسته له حاله وارسته په لحوی ددي کلام متصور شه .

رباعی

بیدل کلف سیاه پوشی نه شوی    تشویش کلوی نوحه گوشی نشوی
برخاك بمیرو همچنان بر باد    مرگت سبك است بار دوشی نشوی

---

(۱) د(اس) په نسخه کي داوروستنی مصرع داسی ده :
از قافله دوراست خودصدای جرس ما .
(۲) د(ح) په نسخه کي «نام ونشان» لیکلي شوی دی .

چو آهنگ رفتن کند جان پاك    چه بر تخت مردن چه بر روی خاك

مع ذالك هغه رموز و دقایق و معانی چه بلند همتان و عالي فطرتان استدعا دفهم لری او غموض د حقایق دهسی راز نهانی چه صاحب نظران او دیده وران ئی په استکشاف کښې نفی او و هم کایعنی په تلقین دیقین مستفیض شی زه خپله مدرکه لخنی قاصره وینم ' او حوصله ئي په ادراك غیر قادره او شیوه در حمیت په منظوم کول دمعانی دنیه مصره نشوه :

فرد

غم چون تو آفتابی زجهان پسند دارم    من اگر چه زره ٔ پستم نظر بلند دارم

لهذا متصدی دامر مذکور نه وم مگر احیاناً مقتضی وسبب چه و ویل شول نو او حسب الطلب می ور کول :

بیت

نیستم شاعر ولی در یاد رعنا قامتی    درد دلم بی خراست موزون می شود

مصرع

مگر لاچار فریاد خیزد ز درد

قیام په تدوین دمسودات اصلا منظور نه ؤ او اقدام و ترتیب ته دمتفرقات نامخطور ـ او په سبب دعدم التفات سر بر مسودات کرت ثانیه په طریق د اصلاح و تدقیق مطمح دنظر عمیق نه شول .ظاهر دی چه کمال دصناعت (۱) په تلاحق دافکار دی او ازدیادئی په تتابع دانظار ـ :

---

(۱) کلمات د صناعت (ح)

مصرع

کار نیکو کردن از پر کردن است

او په تقدیر دخلاف نقصان دصناعت مبنی په بداهت (۱) و کـنه امیدچه ژرف (۲) نـگهبان باانصاف وشکر فدایان بی اعتساف خاصه هغه افراد چه په طنطنه دخیال مستفیده وی او زمـزمه دسحر حلال ئـی مستحضره وی په تقلیل دمضامین مضایقه نه فرمائی — او په تنقیص دصنایـع کنبی راته معذور ووایی — او په صفا دبادی النظر مشاهده دعیب وهنر شی او په بنیاد خر دمتمیز دنیك و بد او التفات دخاطر ئی اقتضا «دخذماصفا دع ماکدر» په کسوت دایضاح کنبی جلوه پیرا کـا، یعنی لفظ دمعنی بالاستیعاب منجر و نظر د اصلاح ته وی او مختص له خطا په فلاح، هرچند ظاهر ددی کـلام دمثنوی دهغه ابیات له ظاهر سره چه گونه ستایش په علوخما داستعداد حُینی مستفاد ددی او په صفـت کنبی می دخپل اشعار قدر سخن سازی کړی ده صورت دنقیض لری — لاجرم توفیق ددواړو محتاج دتاویل شه (۳) وجه (٤) ئی داده چه هغه ویل مبالغتاً دی غرض تتبـع دا کابرو ده، نه ترفع خپله؛ دلیل په تائید دمدعا اقاویل دنارك خیالانو دی او موید دمطلب تقریر درنـگین مقالاتو :

بیت

باین شوخی غزل گـفتن علی از کس نمی آید

با یران میفرستم تاکه میـگوید جوابش را

---

(۱) هدایت (ح) (۲) ژر نـگهبان (ح)

(۳) محتاج وو دتأویل — (ح) (٤) بنه وجه (ح)

کجا ناصر علی تا منتهی گردسرم گردد
نه گوئی گر رود زین دهر نیکو تر شود پیدا

* * *

یو خوشحال یو کم سل خټك نور په طبیعت کښی
زارته د رحمان سر سنی له یو فرده

تر کومه ئی کښوم. (۱) چه مسلك دجم غفیر دی او معبر دعالم کثیر ئ دا بیان واقعی نه دی او دنقد و کلام نه بی حاصل و لا طائل نشی ویل (۲) ترهغه چه مفهوم ددی کلام محمول په مبالغه نشی - تاویل به ئی متعذر وی - افاده د اشعار به حکم دشیوذ پیدا کا او سامعین به ئی په استبعاد کښی پریوزی - پس دا طریق چه مختار دجمهور شه سلوك درفتار پری ضرور و گڼه - دا نکته و سخن رس ته مکشوفه ده او دفرو هیده کس ته معروفه، چه سخن پرداز په خپله گویائي کښی که صنعت دمبالغی نظر انداز کا، غالب اوقات به په هنگامه دسخن آرائي کښی سپر اندازوی - ایضاً قول دحضرت شیخ نظامي گنجوی رحمت الله تعالی علیه چه په دافن کښی موصوف په شان بزرگ دی او په طرز دسخن کښی معروف په نشان ستر گ، کاشف ددی معنی شه او ناطق په دافحوی:

بیت

در شعر مپیچ ودر فن او        که اکذب او ست احسن او

غرض له طرح دمثنوی په سبیل د خطابت، کتابت دهسی تالیف و، چه مشتمل په توصیف داهل درد و دمحبت دی - اما هیخ وقت له اوقات ماضیه

---

(۱) تر کومه لیکم (اس)
(۲) هم نشی ویل (ح)

تابحال مساعد د عزيمت او هيڅ زمان له از منهٔ سابقه الی آن ممد دمشيت نه شه ( عرفت ربی بفسخ العزايم ) ولابد ولاچار ابرام د امر او انصرام د کارمی په تعويق حواله کړه او لحوق وشمول د مثنوی له ديوان سره مقرر شه :

بيت

دل پريشان و پريشان تر ازان زلف سخن      به چه جمعيت خاطر در گفتار زنم

او شخص همنام حُما ساکن د « سرای » چه « اکوړی » هم ورته ويلی شی له حواشی د دی خاندان ؤ ـ شايد چه په تاثير دصحبت ئی کم و بيش روږه د سخن وری بيش نهاد دخاطر کړه

او لسان دحال ئی په‌قدر داستعداد به ايجاد د مضامين مترنم ؤ ـ ازانجمله ځوغزل ئی پغايت و نهايت شهرت کښې دی او په محافل ومجالس کښې زبان زددغزلخوانو ؛ له مشاهيره ديو غزل ئی دا مطلع دی :

وبه مرم عالمه په ارمان دتوروزلفو      کله به راورسی درمان دتوروزلفو

لاکن نامبرده چندان معروف ومشهور نه ؤ ـ په واسطه داشتراك اسمی هغه اشعار په‌نزد د کافه عامه مضاف وماته دی — حال آنکه حُما له اشعاره حُما اسم اصلاً صرح نه دی دامعنی په تخلص مشرح شوی ده او هم معرفت د متکلم په سياق د کلام متفرع دی — او شناسائی دقايل په‌داب دقول کښې مودع ؛ دانکته و کامل عيار ته دتميز ، روشن ده او د قيقه ددی کار و دانش شعار ته مبرهن ؛ چه دا اضافت وماته خطادی او نسبت بيجا — (چپرته سوزان اخگر او کجا فروزان اختر؟! ) دريغا! خوانده د اشعار گروه ها گروه ونامعدود ، اودا ننده د گفتار و معنی په‌نزد دمفقود — لاجرم

په دازمره خاصه په فرقه داهل «روه» کښنې له‌حیثیت دطبع نارسادفکر خطا غزل مهزل شه ، مهزل غزل :

بیت

زگهرسنجی این جوهریان نزدیك است  که‌ز ساحل بصدف باز برم گوهر خویش

او سبب د تالیف داؤ چه له فواه دبعضی متر ددین مسموع شول چه‌مخدوم زاده د ولایت نژاد ، نتیجهٔ هدایت وار شاد (۱) میان محمدی سلمه‌الله تعالی خلف الصدق د شیخ الاجل ولی الاکمل میان محمد عمر دامت بر کاته طبع جیده لری — او سلیقه دسخن شناسی کامله ؛ په د بدبه د سخن آرائی قصب السبق له‌همسرانو وړی ، او په کوکبه دخوش سرائی مقدمة الجیش دهمکارانو دی ، اکثر دواوین د اسلاف ومضامین دحال رنگین وصاف ئی فراهم کړی دی — او په مطالعه ئی تفریح دقلب و تشریح د صدر نقد وقت دمخدوم زاده دی — اگر چه زه ئی په حسب د صورت په‌زیارت مستعد نه یم اما په ولایت دقرینی معلوم شول چه‌دچاله خوله ئی لحماد خیال ومقال ده سمع شریف څه رسیدلی دی —

مصرع : عالم‌همه افسانهٔ مادارد و ما هیچ

بنا براستیلاء شوق په تتبع دورور محمد عابد خان (طال الله عمره) وماته امر په تدوین وترسیل د اشعارو کړ ، زه او ورور چه فی الحقیقت په مفهوم د کنفس واحد محقق یو ، هغه امر په مثابه دبالاصاله متخیل شه او امتثال ئی په مرتبه دلزوم متصور او هم خاطر دبرادر عزیز و گرامی او پاس ئی ، په دا سبب الزم وانسب و ، لهذا په صدد کار کښنې شوم مهما امکن می

(۱) مخدوم زادهٔ عالی مقدار والا تبار محمدی — (ح)

خوض او جلدي په ترتيب داشعار كښې و كړه — منقولات مسودات متفرقه او مرقومات دمنشـأت منظومه هرچه لاس ته راغله په قيد دردیف ددی جريدی ثبت شول (١) او په صفحه ددی مسطر كـشيده ؛ چه قابل دضبط و ربطو ، له هغه اشعارو چه هنور نو حجته آموزد نو مشقی وم ؛ او بهره اندوزد تازه گوئی (٢) شايع وغير شايع هرچه دی قليل بالمعنی واقل باللفظ والمعنی په نسخهٔ مذكـوره كښې مې داخل كړه .

مصرع :

« گر قبول افتد زهی عزو شرف »

ماورای له دی چه نقصان د بعضی صنایـع په كښې مطالعه شه ، تعلل ئی په ترقيم كښې مناسب ؤ ، او تكاسل ئې په تسويد كښې اولی ؛ مې بايد چه خوانند گـار د ديوان — تمام ديوان په خپل ضرافت ير پېژدی هغه اشعار ته په كښې مدخل نه ور كوی او احتراز ئې له ارقامه لازم و گـڼی چه حكم دتحريف لری او له امثاله دتصحيف دی . رعايت دصواب په مجموعه دامور مرجوعه او په جمله موضوعه ومصنوعه كښې مقدوور دنوع بشر نه دی . مصرع :— « كه هيچ نفس بشر خالی ازخطا نبود » بويه چه خطا په ذيل داحسان پوشيده شی او لسان داعتراض در كشيده ، او ترتيب ددې ديوان په شپود سن زر ، سل ، يوا تيا (١١٨١) كښې دهجری واقع شه — تاريخ منظوم چه مشعر په انتساب دمؤلف دی — صورت دتقرير داهسی بيا مونداوهيئت دتعبير ئی

(١) په نسخه و جريده ثبت شول (اس)

(٢) بهره اندوز دناسرائي (ح)

ارتسام دارنگ حاصل کړ :

**قطعه**

په دا باب وه استدعا د عزیزانو چه مجموع شه حلاوت دمقالات
دتدوین تاریخ ئی رای په داشان ووی دشیدا دیوان دی شهد اوخه نبات
( ۱۱۸۱ )

او سره له هغه سبب گویا علت غائی له دی همه د ماغ سوزی او مقصود اصلی له دېری چراغ افروزی دادی چه په شرط د حسن قبول تر هغه چه په دا تیر° خاکدان وتیره دسخندان باقی وي او نکته رانی وشعه وآثار لری ـ اوخوشخوانی اشاعه وشعار ' یو نیم بیت وغزل له دي مجموعی رطب اللسان دارباب ذوق وی ' اوضمناً ئي مؤلف په دعا یادېږی اوپه اثر ددی دعا له تابعانو شي اوپه یمن دتبعیت له مقبولانو :ـ

بیت

تدور ریخته بالم هوا نمیداند مگر دهد پر توفیق جنگل بـازم
تاشبنم افتاده بر افلاك بر آید خورشید جهانتاب فرو هشته رسنها
مور مسکین هوسی داشت که در کعبه رسد
دست در پای کبوتر زد و ناگاه رسید

امید له اشفاق داخوان الصفاء او له وفاق دخلان الوفا هسی لرم: چه دا خزف ریزه په مقتضی د کمال شفقت در دانه فرض کا او گوش د سماعت ورته و نیسی :

ربـاعی

جلوه مفت است و دیدنی دارد بـه تمـاشا رسیدنـی دارد
عالم افسانه است و دیـگر هیچ حرف مـاهـم شنیدنـی دارد



# ثنا

| | |
|---|---|
| ای د کل جهان صنیعه ! | ای د هر آسمان بدیعه ! |
| کامله قدرت دتا دی | نادره صنعت دتا دی |
| لوی دیوان دې مرتب کړ | چه انسان دې منتخب کړ |
| هر ورق ئې گونا کون دی | هر مضمون بو قلمون دی |
| هره ورځ ورق گردان دی | مخترع د لوی شان دی |
| تاله خاورو آدم ساز کړ | تا همراز و تا دمساز کړ |
| تا مصداق د کړمنا کړ | په هر اسم دې دانا کړ |
| په وجود له خاکیا نو | کړ مسجود افلاکیانو |
| ساز دآب دې گرځنده کړ | شب ورورز دې رونده کړ |
| تابنده دی پر شهاب کړ | مانده دې د حباب کړ |
| چه په ملك کښې دوجود دی | بهره مند دتا په جود دی |
| که بې دست و بې پاحوت دی | ستا په خوان کښې سپر په قوت دی |
| ما رهم خپله روزی مومی | گه خوږل کا گاهی شومی |
| دیده و اخلې له عقر به | اقمه و رکړې لحما ربه |

ستا کرم پاکه سبحانه !

مگس نه شړی له خوانه

# مناجات

ا لهي د ميني درد را | گرم دل، آهونه سرد را

خلاص کړه ماله بې دردي | له دې هسې دل سردي

زړه په شان دغنچې راکړه | آتشي ځما مينه کړه

تل د جوش په مې لبريزه | په خروش ترنې سېرېزه

بيا په هسې شان بېتا به | چه سيالي کاله حبا به

په يوه ساعت کښې نوی | دهوا په جنبش چوی

چه په سوز دشفق خاص شم | دعلاج له غمه خلاص شم

نمکسار ځما ځگر کړه | تربيت ئې په اخگر کړه

بيا سينه صدف وار چا که | چو شيده په کښې تنها که

پائې درسته برگ نی کړه | ځای په ځای ئې ناوکی کړه (۱)

پو شيده دې هسې شان وی | چه سو فارئې بې نشان وی

وی اثر ځما په آه کښې | جلوه گر په هر نگاه شي

ور کړه رنگ له جگر خونه | قواره مې کړه گلگونه

تور ليمه ځما سحاب کړه | بارنده ئې د سيلاب کړه

رنگينه مې کل سرشك کړه | دياقوت دآب ئې رشك کړه

ما سوخته د نمر په شان کړه | بل په ما هغه نيران کړه

چه ظلمت مې تمام دور شي | د اخگر ابرې مې نور شي

لکه آب د مهر غاري | آميزش کړه له ما لري

---

(۱) پکښې درستيز ناوکی کړه (ح)

ما په طور د سیماب کړه ورك له ما دشبنم داب کړه

چه دا ډیر آمېزش کم کړم د صحبت له ګرمۍ رم کړم

لکه څوك پخپل ایوان کښې خوش یم زه په بیابان کښې

که آسمان می هم آو بېزوی په هر آن می آفت خېزوی (۱)

ما په وضع د پروین کړه د لجمعی څما آیین کړه

د هغه قاتل طالب یم په هغه زخم راغب یم

چه خون ریز په شان دمیغ کا خو چه یو رته آبدار تیغ کا

زه د برق په دود مجروح شم په یوه تپش بې روح شم

د هغه ساقی له دسته چه ئې شور نه ځی له مسته

جام ئې صاف لکه خورشید دی په حیرت ورته جمشید دی

بیادهوش په ځای هستی ئی (۲) تمامی خود پرستی ئې

چه خراب ئې د شراب وی دمحشر شور ئې کباب وی

په نصیب می جوشان خم کړه په تشریب می تمام ګم کړه

ما په هسی مخ عاشق کړه په د اعشق کښې می صادق کړه

چه مشهور په بی نظیر وی دلربا او دلپذیر وی

هغه شور د عشق له شوره چه د خپل شورش له زوره

نشی ځای په بحر و بر کښې و کا ځای څما په سر کښې

هسی شور یوسم و ګورته چه حیرت وی څما شورته

د اوی حشر علامت شی

په برزخ کښې قیامت شی




(۱) هر زمان می آفت خیز وی (ح)

(۲) بیاد هوش په ځای هستی ځی تمامی خود پرستی ځی (ح)

# د پښتو د شعر حسب حال

د پښتو ژبه تمامه — ده بې نظم و بې نظامه
له اوزانه مختلفه — له میزانه منحرفه
په میزان باندې چه راشي — هر کلام ته و بالاشي
چه په دا ژبه گویا دی — ددې فن سخن سرا دی
که عالم دی یا جاهل دی — که ناقص دی که کامل دی
چه اشعار وته ئې گوري — خود زما تر شعره پوري
جوړ د نثر عبارات دي — مسجع په فقرات دي
هر کلام ئې ناموزون دی — په نقصان ئې د اقانون دی
حواله چه په تقطیع شي — گهې طعن، گاه تشنیع شي
د کلام چه وزن نه وي — پرې د نظم اطلاق څه وي
حقیقت ئې معطل وي — د امجاز ئې مرتجل وي
په دا هونېره درد سر کښې — په دا ډېر خون جگر کښې
آراسته په قانون نه شه — کالموزون شه موزون نه شه
چه ممتاز ددې گروه دی — ددې ساز په آواز پوه دی
تندفرس چه څخونکو شي (۲) — پرې پوهېږي (۳) دانا گوشي
قباحت (٤) پکښې لوی دادی — و دانانه هویدا دی

---

(۱) ددې کار په نقصان پوه دی (پ)
(۲) (پ) په نسخه کې د «څه خونکو» په ځای «څخونکو» راغلی دی.
(۳) پرې پوهېږم (اس)
(٤) قیامت (اس)

چه سره له دې نقصانه — دا چار و ګنې آسانه
هر قایل پرې اقدام و کا — په دا فن کښې کلام و کا
د پښتو شعر دلیل شه — د هر چا قول دلیل شه
پښتانه چه شعراء دي — له دې طرزه معرا دي
چه په لاف و دا شعار دي — په معنی دا شعار عار دي
ناواقف د سلیقې دي — نابلد د طریقې دي
د هر وزن منافي دي — چه خبر په قوافي دي
دا شعار له صنایع نه — د ګفتار له بدایع نه (١)
چه د نظم تصنیف کاندي — رعایت در دیف کاندي
عندلیب وایي و خاندته — راشي دې زیبا بستان ته
نشیمن ئې د ارنګ باغ شي — هم آهنګ د سیه زاغ شي
ګل پریشان کاله آهنګه — بیا غنچه کاندي دل تنګه
په دا هو نبره پښتنو کښې — بیا یه ژبه د پښتو کښې
په دافن کښې خواشخاص دي — چه په نز د د خرد خاص دي
چه خوشګوي و همه دان دي — د پر زمونږ د خاندان دي
یو مرزا، دولت، واصل هم (٢) — ښه کلام لري حاصل هم .

---

(١) دالفاظ له صنایع نه — دمعنی له بدایع نه (ح)

(٢) مرزا دپښتو مشهور شاعر دی چه په (١٠٤٠) هجري کال ددکن په جنګ کې شهید شوی دی (پښتانه شعرا ٨٠ مخ)

همدا شان دولت دمرزا معاصر دی مګر مرزا تر ده د مخه وفات شوی دی .

او واصل هم دپښتو پخوانی شاعر دی، خوشحال خان هم دوی داسې یادوی :

که دولت و، که واصل و، که دانور وه — په خبرو می دهریوه ر یشخند کړ

مرزا حنان قندهاری هم ویلی دی : ښه تیرین الفاظ ویلی دی واصل .

هر هغه چه نا مشهور دی — جوړ په داب و په دستور دی
دا و یل په احتمال کړم — اعتراف ئی د کمال کړم
د پښتو شعر معلوم ؤ — په معنی کښی کالمعدوم ؤ
چه قلم په لاس د «خان» شه (۱) — مرتب ئی لوی دیوان شه
تصانیف ئی فراوان شول — مستعد د درست افغان شول
سلاست د عبارات هم — لطافت د اشارات هم
ډیر دقت د معانی هم — بلکه خود همه دانی هم
په کلام کښی ئی ظاهره — په اقلام کښی ئی باهره (۲)
سلیقه ئی کړه عیانه — طریقه ئی کړه بیانه
هر شاعر چه دافغان دی — ریزه چین د «خان» خوان دی
فی المثل که بل مهتاب وی — مستفید د دې آفتاب وی
چه په غرونو شی لار صافه — قافله درومی تر قافه
چه وی پل په دریابا ندی — ځوك به غم د شنا کاندی
له حسده که صاف زړه کړې — په دا کار کښی انصاف وکړې
«خان» ممتاز د تمام «روه» دی (۳) — بل استاذ د دې گروه دی
په میدان د ممتازانو — همعنان د برق تازانو (۴)
«سرای» (۵) مطلع د دې آفتاب دی — په عالم ئې هر ځای تاب دی
پکښی هسی شان نکات دی — چه نازك لکه ذرات دی

---

(۱) مقصد خوشحال خان دی .
(۲) دا بیت د(پ) له نسخې څخه را نقل شو .
(۳) «روه» د پښتونخوا زوړ نوم دی
(۴) د(پ) په نسخه کی دا بیت په دې ډول راغلی دی :
په میدان د استادۍ لری شان د برق تازی
(۵) «سرای» د خوشحال خان مسقط الرأس دی .

په رنګین خیال رنګین دی — سر تر پا په ګل زمین دی
دا قطعه ده ګل افشانه — رنګینه تر بدخشانه
که انصاف کړي قابل خېز دی — دا بهار رعنا دل خېز دی
هم ئې ښه آب و هوا شته — بلبلان ئې خوش نوا شته
هر بلبل ئې خوش آهنګ دی — دخیال ګل ئې رنګارنګ دی
که ئې بحر یا ئې بر دی — که ئې سمه یا ئې غر دی
که ئې باغ یائې صحرا ده — که ئې خار یا ئې خارا ده
که ئې ګرګ یائې آهو دی — که ئې بوم یائې تیهو دی (١)
که ئې وز، یائې پلنګ دی — ګربوه یائې کړنګ دی
که میردی یائې ښکار دی — که ئې سیر یائې پیکار دی
هر نفس زما په یاد دی — دم په دم زما اوراد دی (٢)
دا کلام د دانشمند دی — که ئې واوری د لپسند دی
د وطن مینه ای ځانه — را پیدا ده له ایمانه
په حرمت د پاك احمد و — صلوات بانډی سرعدو
هم په آل هم په اصحاب ئې — په پیرو د پاك جناب ئې
نه یو ځل، په څو کرته — بلکه زر زره مرته
څو ګردان وی دا سپهر — درخشان وی ماه و مهر

---

(١) تیهو هم راغلی دی، مګر صحیح ئې «تیهو» دی، برهان قاطع ئې معنا داسې لیکلې ده : «پرنده ایست شبیه بکبك لیکن از کبك کوچکتر است و معرب آن تیهوج باشد» (برهان قاطع ص٢٠٦)

(٢) دغه یاد په ازدیاد دی (پ)

ځو چمن د بهاران وی | انجمن و ښه یاران وی
ځو باده ، جام و ساقی وی | ځو نشه ، خمار باقی وی
ځو خرام دی د تدرو | په قیام وی د باغ سرو
ځو فقره د دې سپنج وی | ځو نکته او نکته سنج وی
ترهغه دې «سرای» ودان وی | همدی جوړ دا خاندان وی
ښې خبری بیاموزونی | ېکښې او سه روز افزونی
ګلستان ئی خورم او سه | بابلان ئی بی غم او سه
پرې ګذر د خزان مه شه | عندلیب ئی نالان مه شه
د «بګرام» (۱) خطه د لکشه | د بهار د خاطر خو شه
چه را ځی ګلی په ګلی | په «بګرام» تر ډېره ملی
داد «روه» قطعه تماشه | ګله رسی تر «بګرامه»
سرتر پایه رنګ آمیز دی | رنګینه خیال انګیز دی
په بهار کښې ئی د ګلو | نعرې اورم د بلبلو
بلبلان ئی خوش تقریر دی | د طوطیانو هم صفیر دی
په دیار دتمام «روه» کښې | په دا قام ، پهدا ګروه کښې
یو په «سرای» زبان آوروی | دویم ځای ئی «پېښاور» وی
ځو خاکی ، ځو آتشی وی | تواضع و سرکشی وی
ځو دا کاخ دل افروز وی | په کښې داجشن و نوروزوی
ترهغه پوری «بګرامه» | په جهان مشی بی نامه

---

(۱) بګرام دپېښور دخوا زړ نوم دی رحمان بابا هم وایی :

هم نغمې کا ندی هم رقص کاهم خاندی | درحمان په شعر ترکی د بګرام

ماچه دا کلام ادا کړ — نوی طرز می را پیدا کړ
په پښتو کښی گویا خاص یم — سزاوار اختصاص یم
چه په لاس د «خان» قلم و — قلمرو ئی دا عالم و
هغه وقت که دا سواد وی — په کاغذ بویه چه صاد وی
چه مهمندو قیل وقال کړ — یعنی دوی سحر حلال کړ
څو ئی سطر دا نشا وی — په‌دا سحر اژدها وی (۱)
که عصا می دا خامه وی — تا کتلی کار نامه وی
چه‌څه کار ید بیضا کا — هغه کله نور اعضا کا
ادب می کله دفضول دی — په طامات کله محمول دی
چه زما څه قیل وقال دی — خود زما په کمال دال دی
په‌دا شرط که‌سخن رس وی (۱) — زه معذور یم که ناکس وی
د گفتار په میدان راغلم — جوړ په ساز وسامان راغلم
یکښی پروت دمعنی گوی دی — چه‌چوگان ئی گفت و گوی دی
هغه کس که (۲) یکران تازوی — با هوس و چوگان باز وی
زر دی را شی تر میدانه — دا گوی څه‌رنگ وړی له‌مانه
هنر نه دی چه ځان ستا یم — که په فن کښی بی همتا یم
مناسب د تقریب دا شوه — چه می طبع خو د ستا شوه
سخنور طوطیان که دیر دی — کله دوی ځما په خبر دی

(۱) همگی نور اژدها وی . (پ)

(۱) په داشرط که سخن رس یې — زه معذور یم که ناکس یې (پ)

(۲) د (پ) په نسخه کی د «که» په ځای «چه» راغلی دی .

چه دا شیرین نفس کړم | نیشکر چوب د قفس کړم
چه لب والکه صدف کړم | ډك په درو هر طرف کړم
دار نګین خیال می په کښلو | قلم ښاخ کا د سرو ګلو
تر آفتاب می روشن رای دی | تر فلك رفعت ګرای دی
چه قاصد د تر وقع شی | فلك خم په تواضع شی
لا تر نمره انور بر ښی | ور ته ستر ګه د نمر بر ښی
معانی می ډیر غرا دی | له نقصانه مبرا دی
همګی صاف ور نګینی | لکه آب دیاقوت وینی
هر مضمون می طبع زاد دی | کل ز مادرای ایجاد دی
نه غلط نه مبتذل دی | توارد ئی محتمل دی
ګله مند یم له حاسده | ښه متاع کاندي کاسده
انګبین سکنجبین کا | په مزه ئی ترش جبین کا
وایی خس و کهکشان ته | سنګ و لعل بدخشان ته
د حاسد د خل بیحسابه | صفا ئی یو سی له رایه
تند نفس په څراغ څکه (۱) | خو د و فائي کاندی ور که (۲)
په هراس یم له نا پوهه | قوی طبع کاستو هه

---

(۱) ښه نفس په څراغ څکه | خو رونائی کاندی ور که
(ح)

(۲) احتمال لری چه د ابیت داسی وی :
تند نفس په څراغ یکه | څورونا ئی کاندی ور که

چه نظر ئی په اشعار شی ... هر یو شعر خوار و زار شی
نامر غوب ئی هرهنر کا ... په عیوب ئی معبر کا
چه مذاق ئی دوانبه وی ... ورته خس ترحلوانبه وی
ممیز چه د جوا روی ... دربه خه کا که شهوار وی
بی قیمته هغه در شی ... چه بهلاس دساده ور شی (۱)
چه تعجیل کاندی په لو ستو ... ورته یوشی وهاندی ورستو
که خوانده که نا خوانده وی ... به همه کښی وامانده وی
افاده ده که الفاظ دی ... مقتضی د ډیر لحاظ دی
چه نازك د چا خیال وی ... هم بلند لکه هلال وی
ښه رنگین و ښهر بس تر وی ... بهمانند دگل شکر وی
تأمل په کښی ضرور شی ... لغه پس پری مرور شی
که صحرا گل و گلزار دی ... آهسته خرام په کار دی
په خرام کښی ننداره شی ... رنگار نگ بهار ښکاره شی
که جولان په خیابان کړی ... خیابان به بیابان کړی
چه لقمه نغاړی بی شخونده ... بهره نه لری له خونده
په نغړ دوئی خه خووار کړه ... خوله عادت نه په نشخوار کړه
چه هلال ته لکه ستوری ... ډیر په غټو ستر گو گوری
په رویت ئی مسر ور تر شی ... په محلت ئی زر اختر شی
چه ما هر وی په دافن کښی ... هم غایروی په سخن کښی
مقاصد ئی د منصف وی ... نه حاسد، نه معتسف وی

---

(۱) چه په لاس دساده ورشی (ح)

تر هغه می سلام یوسه — ور سره دا کلام یوسه

ورته وواېه تېز هوشه! — ددانا سخن نیوشه

په اشعار می نظر وکړه — وار په وار پرې گذر وکړه

که واقع په کښې خطا وی — تو جه دې ورته سقا وی

ته ئې جوړ لفظ و مضمون کړه — ما په دا احسان ممنون کړه

خطا کېږی له بشره — خصوصاً له سخنوره

چه مدام سخنوری وی — که کلام د «انوری» (۱) وی

له خطا کله خالی وی — هر مضمون کله عالی وی

که نکات می عجایب وی — عبارات می غرایب وی

خاص په حسن د کلام وی — د معنی دقت ئې عام وی

خالی نه دی له صنعته — عاری نه دی له رفعته

لغه پسه بېدار مغزه — دا نسخه و بوله نغزه

خیالات می رنګین بوله — مقالات می شیرین بوله

په لوسته ئې ابتهاج کړه — آفرین می په مزاج کړه

که می پس له انتقاله — واخلې حظ له قیل و قاله

په حالت دا نابت کښې — په ساعت د اجابت کښې

ماعاصی په خاطر یاد کړه — بیا می روح په دعا ښاد کړه

چه ئې طبع وی سلیمه

صله مومی له کریمه

---

(۱) انوری د فارسی مشهور شاعر دی چه ددولتشاه سمرقندی په قول په ۵٤۷ هجری کال په بلخ کې وفات شوی دی .

# غزلیات

## (الف)

الهی د محبت درد و فغان را ... به معصوم کنار د نور غوندی جانان را
چه مژگان می دجوهر حکم پیدا کا ... هر نفس لکه مرآت حیران چشمان را
ماله درده دغنچې پشان او ده کړه ... و پهلو ته می بستر د خارستان را
چه خپل برگ په آب و چرخ نکړم سرسبزه ... د همت علو په شان د کهکشان را
چه مدام وی په چشمه د آفتاب، وللی (۱) ... د سحر په شان درست عمر سپین دامان را
چه کباب ئی په گرمی زماجگر شی ... د لاله غوندی په جام می جوشان را
چه خالی نه وی یو دم له جوش خونه ... زخمی زړه لکه غنچه په تېز پیکان را

ما «شیدا» کړه دیترب له جارو کښو
و تدفین و ته می خاك د پاك آستان را

نزاکت ئی د مزاج بلا برپا کا ... چین ئی څکه په جبین کمر پیدا کا
و منزل ته د محفل په تعجیل رسی ... چه له خپلی لاری سنگ اری مینا کا
مگر پرئی درست بازار دی په لعلو نو ... چه ئی گرم هره ورځ په خون بها کا
د حباب په دودئی سروی بېدماغه ... چه نظر په عظم و شان دلوی دریا کا
درست صورت ئی دغزال په شان دیده شی ... څوك چه بیم په خاطر یاددې صحرا کا
د دیوار په تیره خاك نقش و نگار دی ... څوك چه رنگ په حنا خلق دست و پا کا

چه سرور په مستعار کا «شیدا» واوره
د دهقان په دانه رقص د آسیا کا

---

(۱) به چشمه ئې د آفتاب همه شسته کړه (اس)

سره جمع صاف دلان دین و دنیا کا　　　　الکه تیغ په یوه ځای دم و صفا کا

دهرچاچه منور د بخت کوکب وی (۱)　　　　انجذاب د کهکشان په کهربا کا

چه طلب کاندی باده مستان د بزم　　　　دساقی سترگی نشه ئی دوبالا کا

دمظلوم په قتل ستا د بیداد غشی　　　　آلوانه له دي سروزه په هوا کا

چه دزړه وینی می جوش وهی له سترگو　　　　هر بانه می الکه خار د کربلا کا

هیڅ ناله نشته د گل په سرولنبو کښی　　　　عندلیب په چغو سوز ولی غوغا کا

ماشسته کړه شمع وار په ډېروالښو　　　　پیچیده نامه می څه لره څوك وا کا

که له قدره ئی «شیدا» خبر عنبر شی
ځان به خاوری د سرهند و بخارا کا

که ښکاره زما خاطر دلاله داغ کا　　　　په ژړا به سترگي سري د گلو باغ کا

دحباب غوندی می بر په آه سرد کړ　　　　څوك زما په کور کښی بل څه رنگ چراغ کا

افروخته ئی وی محفل په شان دشمع　　　　چه سوخته دبل په کار کښی خپل دماغ کا

دگردش نوبت ئی هیڅ په ما را نشی　　　　که ساقی د زمانې فلك اياغ کا

زنگ که هر کله «شیدا» دتیغ جوهر خوری
د مگس په بال به څه رنگ استفراغ کا

په څه شان کرم وایه ښکل آستان دتا　　　　تر آسمانه دی بلند ایوان دتا

چه بیدار نه شوي هر گز دناز له خوبه　　　　مگر نه لری سحر کاشان دتا

صبوری می دمحشر تر صبح بویه　　　　گوره څه کالاس ځما گریوان دتا

(۱) تر هغه چه ئي روښن د بخت کوکب وی (پ)

چه غبار دې دمیدان لکه تور دوددی　　مگر وسه په گرمۍ عنان دتا

نه ئې خورې نه خورې آسمان سیر ته!　　آخر نشه نان چاشت په خوان دتا

چه امید د انتفاع کوې له مصره

«شیدا» نه لرې یوسف کاروان دتا

نن فلك واخیست په سر افغان ځما　　چه خبر شه لکه ماه تا بان ځما

خوښ یم زه لکه شفق نمك په زخم (۱)　　تر هغه چه کاعلاج آسمان ځما

را ته نه کا التفات غبار د لارې　　څوك به یسی لکه برق عنان ځما

په حاصل کښې سر بندې پشان د شمع　　په خونی لارې روان کاروان ځما

دلداری د ناتوان ځما عادت دی　　بار په دوش وړی دهر خس طوفان ځما

ځمار نمګ د استعجال په بال پرواز کا　　په ګلبن دی لکه ګل آشیان ځما

تهیه د اسپ و فیل د ه بیحا صله　　یو بساط دی د شطرنج میدان ځما

ګره ئې والکه ګره د تورو زلفو　　بار یکی لری تمام دیوان ځما

هیڅ قرار نه کا یودم له تن لز له　　په جهان لکه ګرد باد ایوان ځما (۲)

د بهار له لاسه داغ لکه لاله یم　　ولی نه کا التفات خزان ځما

تکلم می په آله دی ددر دونو

«شیدا» نشته لکه نی زبان ځما

په ادا د تو رو ستر ګو دلبری کا　　که دهند جادو ګران جادو ګری کا

برابر ور ته کتی نا ظران نه شی　　چه لباس لکه آفتاب هسې زری کا

(۱) شفق وار می په برهار نمك اولی دی (پ)

(۲) دا بیت د (اس) په نسخه کی نشته د (پ) له نسخی څخه را نقل شو.

رخشانی ئـی دخـنـدا نبات د لـبو — وخو نر بز نه دعالم توره مصری کـا

د چمن طوق ئي ولی گردن خم کړ — له آزادسره چه‌سروه همسری کـا

په سنگين خاطر ئی غم دفرهادنشته — چه‌خندا په بی‌ستون کبك‌دری کـا

څه پـه‌دا په سليمان دجـهـان نـشی — که‌حاصله مشت خس انگشتری کـا

چه‌خالی ئی نه‌وی خوان له گرم نانه — په‌جهان لـکه‌خورشيد به‌سروری کـا

و تميز نه‌دآسمان څه‌خو نظر کـړه — په فولاد بانندی گمان دجوهری کـا

دصورت په قوت څه شی بی اسبابه — په‌شبنم کنبې کوم نهنگ‌شناوری کا(١)

«شيدا» مه‌غواړه جيناله سخت رويانو

څـوك به‌باده دگوهـر د آب تری کـا

وسيله‌چه‌ئې ځما دبـخـت سـهی کـا — دزوال‌سايه‌په‌کار کنبې کوتهی کـا

په بقا مـومـی طـا لب دفـنـا بحر — دحباب قطره‌قالب په‌دم تهی کـا(٢)

ستا فتنه له تاسره لـکه آسمان ځی — بدرقه به‌دې څوك‌څه‌په همرهی کـا

چه له اوره‌شی‌جدا شرر وار ومری — ستاسوخته‌په‌عافيت کنبې جانده‌ی کـا

په هوا وهی لا سـونه لـه سر و ره — په‌چمن کنبی‌چه‌قمری سروسهی کـا

دهنر اهل نازه پـه کمتر څـيزوی — په‌مايه دتورو خاورو باغ بهی کـا

تل به نه وی د يار دا چشم پوشيه

«شيدا» څو به‌غنچه وار کم نـگهی کـا

له‌شفق سـره آ فـتاب متـمثل کـا — چه‌جلوه هغه طناز په‌رنگ‌محل کـا

د آفتاب دچشمی آب دشفق رنـگ‌دی — چه تصوير نه‌ئی دتامصور حل کـا

---

(١) دا بيت د(پ) په‌نسخه کی نشته .

(٢) دا بيت د(ح) له‌نسخی څخه رانقل شو .

گیرائی پەهغه دم د رخسار گـو ره    چه کا کل پەخپل جوار کنبې مسلسل کا

د گر یا نوستر گو آب سوزان آتش وی    گوره ابر اور دبرق پەخرمن بل کـا

زمانې هسی محتاج دحر کـت کړم    گویاخواب پە گهوار ەخمامخمل کـا

کج روی دآسمان نه ځی له کور یه    کەمهتاب ور تەروشن پەشپه مشعل کـا

د نر گس تر گل ئې زیاتەزیبائی وی    چه پەستر گو کنبې خنداځما اجملکا

دشعلی زیست ومردن گوره پەبادوی    ولی ناز پەخپل دولت اهل دول کـا

سنـگ دلاری ئی «شیدا» کوه قاف نشته (١)

نوری ثوك لـکه آسمان کـبود در غـل کـا

ستا پەستر گو کنبې ناتأرسیه کجل کـ    بی اجله دم پە دم کـار داجل کـا

بیا هاله دخپل ر خسار تماشه گو ره    چەخو نر یز تەدې عالم خط مستجل کـا

لـکه آب دز مـرد خوشنما تر شی    چەجلوەدهندسبز ان پە گـنگاجل کـا

هر ثوك مات دزنگ انبکر کـاسکندر شی (٢)    دخاطر جوهر صفا دسجنجل (٣) کـا

کړی اثر ددرد ناله پە سختو زړو نو    تل ددف پەوهل چیغی جلاجل کـا

کشاده کـړ دد گـنج در پەسپینەزیره    گدا هم پە سحرو ادخو نی جل کـا

هغه دم کوی طامع گـرم جـو شی    چەشکم پەطعام پر لـکه مرجل کـا

ددانا چشم پو شی د کـار تـد بیر دی    جال تەو گوره اسیر پەثەشان جل کـا

نیك و بد «شیدا» پـکـار پەخپل محل شی

از اله در نـځ حنظل و سفـر جـل کـا

---

(١) سەدلاری ئې «شیدا» کوه قاف نشته (ح)

(٢) هرچه مات د زنـگ انېکر کـا سکـندر شی (ح)

(٣) هنداره (المنجد ص ٣٣٠) .

مرده دل ئې د جمال تماشا څه کا؟ | د مجنون تصویر ادا د لیلا څه کا؟
چه آشنا لکه غزال د هیچا نه وی | په هغو ستر ګو اثر د وفا څه کا؟
د سرو زر اسباب بکار د مهجور نشه | د دستار غنچه مقدم د صبا څه کا؟
چه پاره ئې ګریبان لکه سحر وي | تش د حال د اهستی رسوا څه کا؟
هرګز نه لری بهره له دست و پایه | هسمك عالم به رنګ د حنا څه کا؟
سپك په شیان کړي د حباب تنګ ظرفیه (۱) | و تمکین ته دې جوشش د دریا څه کا؟
د وفا طمع ئې مه کړه سکندره | ورته و ګوره دوران په دارا څه کا؟
په ستم ئې د تاختن تمام خراب کړ | د محمل ناقه ئې نور په صحرا څه کا؟

که پرواز لکه شهباز و کا هاله شي
ګیر ائې د هغه دام په «شیدا» څه کا؟

که ساقي تلخه باده دریا شور کا | د فلك په جام بهمست کله میخور کا
آراسته وي تل محفل د خنده رویو | زمانه به د ګل جام څه رنګ نسکور کا
چه لري لکه شانه هزار چو بونه (۲) | بې افسونه به تیول د تور منګور کا
دل تنګي کړم لکه ګل په خنداور که | که مې باد د صبا بل په خونه اور کا
چه په سر ئې سبز آسمان زري دستار ږدی | عاقبت ئې لکه شمع بیا شر تور کا
لکه ګل کړي ګران بار تر دامنی ء | باددی څه لکه غبار به کتف سور کا

چه امید په ځپل صورت د وفا نشته
«شیدا» ځوك د ځان آشنا پائې حضور کا

---

(۱) د حباب تنګ نظری ء (اس)
(۲) چه بلاس کی ئې تل چوب لکه شانه وی (پ)
چه به طور د شانه هزار زبان وی (ح)

دا صحرا په نقش پا کړ گل زمین چا　　سر بلند کړله خاقانه هر گلچین چا

په گلندام ئي مگر بند نالان بلبل دی　　بولباس په دا بهار نه کړ رنگین چا

چه د کوه په شان دي تيغ په غاړه کيښو　　بی له مانه به وو دا زخم سنگين چا

د بیکس په ماتم کله چا نعری کړی　　څوك په مرگ د شمع وليده غمگين چا

چه وتيغ ته مي گردن زيبږدی له دوشه　　بی له شمع کړه معمول څما آئين چا

څوك په زخم پاهه نږدی د بیکسانو　　دیتیم اوښی کړی وچی په آستین چا(۱)

دغنچي په شان به گل شي سر تر پایه　　که مدام د گل بهار کړ دلنشين چا

چه په زعم د «شيدا» لکه نمر گل شه

آويخته کړ دسرو نيك په سپين جبين چا

نوی خط دي په چمن درخسار زيب کا　　که بورا په تازه گل د بهار زيب کا

د عشرت په عالم نن د مهتاب شپه ده　　چه کا گل دي په سپین مخ تار په تار زيب کا

سر کشي د جهانسوز سري لمبي وبنم　　دمقیش طره که ستا په دستار زيب کا

چه ددي گرم نگاه په تیغ شهيد وی　　دلاله غوندی مي داغ په پرهار زيب کا

دبهار په دود چكن ئي د دامن شو　　چه په سير دي هر دشت و کهسار زيب کا

مگر تادي آرايش د جمال کړي　　دتمام ښهر نن درو دیوار زيب کا

«شيدا» هار دشهوار دردی سفته شوی

که په ژبه د تحسين دي گفتار زيب کا؟

---

(۱) حمید بابا هم وایی :

دهغه استونی لاس په بيضا دی

چه يږی وچی کا مدی اوښی دیتیم

په درياب به څه رنګ ترشي کام ځما — چه نسکور لکه حباب دی جام ځما

د نګين عالم خبر ورځني نه دی — هسي ورك شه ستا په غم کښي نام ځما

دلاغر صيد له شر مه هسي آب شه — چه سر سبزه کړه دانه ګلدام ځما

دذري په شان مي تاب د آفتاب سوزی — هيڅ سبب د راحت نه شه بام ځما

صبح وشام مي کړههم رنګ سية روزی — ځکه نه اری هيڅ صبح وشام ځما

دسيماب په شان ئي نه موموم بي‌هرګه — د حيات له لاسه ورك آرام ځما

ستاد مينې رازمي هسي پوشيده کړ — چه په تانه شه خبر سلام ځما

په ګلشن‌وی «شيدا» بيا پر تو دصبح

که په‌سپين لباس کاز بې ګلفام ځما

عاشقي د دوه مينو صورت يو کا — مرګ دشمع وشعلې محبت يو کا

بر بښوی قوی بازو چه قامت خم شي — د کمان په‌شان خپل ضعف‌وقوت‌يو کا

له خاطره ئي امساك د بوسي نه ځي — که حاتم سره علو د همت يو کا

په صمت ئي د آبسر و بلندۀ طبع — دمضمون دقت دماه نزاکت يو کا

نتيجه ئي دصحبت خس وخاشاك وی — له ساحل سره چه موج‌صحبت‌يو کا

که روزی شي استغنا دافتاده وو — له‌آسمان‌سره به خاوری‌رفعت‌يو کا

هغه دم چه ار تکاب په ستم و کا

زمانه‌د «شيدا» رنج وراحت‌يو کا

ستا ګلګون به‌ولي عزم‌دميدان کا — په‌ديده‌مي‌د ګردش‌لکه‌مژګان کا

که عصا لکه نرکس دپيری‌د واخلي — عاشقان‌به ګله‌بند وزی چشمان کا

پس له‌مرګه وی ناله دسينه چا کو — بی نفسه دجرس غوندي فغان کا

داغونه اوري په سر بل په فرياد غرونه
دا سنګدل ګر ستم په درشت جهان کا

وا صلاح نه ئي نمك ګرزي په خيال کښي
هر خاطر چه د کباب غوندي بريان کا

تيرماوي د هغو زلفو لوي آفت دي
چه حلقه ئي وعالم ته په کمان کا

چه نفس څاندا آه په سر کښي وکا
ولمك لا ندي خپله شمع تر دامان کا(۱)

د حباب په شان ئي زړه نمايان نه شي
چه سينه له درده چاکه بيدلان کا(۲)

وصحبت و ته ضرور مناسبت دي
سنبل څکه په سر و ګلو پريشان کا

هر مضمون ئي مبتذل په شان د ني دي
ګوبائي چه د معني تهي دستان کا(۳)

تل په خپله شيشه مست لکه غنچه يم
څه په ياد په ما «شيدا» پير مغان کا

په آفتاب کښي سيرولي جانانه کا
د پري سايه و ګري ديوانه کا

شب داج به ئي مهتاب کاستا د زلفو
د آفتاب پنجه که څان دعاج شانه کا

به پنا پست پو له بنا دعا شقيه
که وا له دولك شمع پروانه کا

وازه خوله ئي لکه درشي خالي پاني
چه حاصل ئي بي نصيب آبودانه کا

به کاشان دد پر اسباب تو کل نشته
دمخمل عالم ئي خواب په افسانه کا

چه تعمير ئي د بنا په آسيا سنګوي
دم په دم به غم د آب صاحب خانه کا

«شيدا» کله شه آسمان آشنا د خلقو
څوك به خپله دا سبزهٔ بيګانه کا

تار په تار چه په سپين مخ مشکين ګيسو کا
راته ياد دچار چمن ګل شب بو کا

آراسته جمال ئي درست دچين تصوير شي
توري زلفي چه قلم دمشکين مو کا

---

(۱) (۲) دا دوه بيتونه د (ب) له نسخي څخه را نقل شوول د (اس) په نسخه کي نشته .

(۳) دا بيت د (ح) له نسخي څخه ولد نقل شوي .

زه بلبل په غه باغ یم باورو کړه	چه نرګس ئې هم چشمي دشوخ آهو کا
عندلیب ګڼه معذور په بدمستي کښې	دغنچې شیشه کار ونه د سبو کا
تسلي ئې د نمك په سوز و نشوه	د کباب زخم هموز داور آرزو کا
لکه ګل به دا بهار کښي رسوا کړزم	دریده ګریوان که خوك خمار فو کا
نه شي هیڅ د برق لمبه زیاته یا کمه	که باران په شیبه اوري باد ئې یو کا

که په شان د آئینې ئې لذت و اخلې
صورت که ګله «شیدا» یو رته له زانو کا

هر ناظر چه نندیاره ستا د رخسار کا	ستا صورت په زړه کښې ځای آئینه وار کا
یو دم یو رته کړه چشمان د نازله خوابه	ستا دستر کو په شان خرب ګله بیمار کا
مرغلری ئې لیده دسره پیز واند شي	که ئې لب له دیره نازه ګفتار کا
آزاده لکه په تنها ئې کښې	په فقدان دمشتری ګرم بازار کا
دصورت په شان غافل شي له آفتا به	ناکسان چه سر به سیوری دد یوار کا
هیڅ غنچه د ګلو نه ده ساده دله	اعتماد به په بقا د نو بهار کا
و تحریق ته ئې حاجت دخاشاك نه وي	چه سوخته ئې لکه شمع خپل زنار کا

تل ئې بیم کوي «شیدا» له دوزنګي
خپل لیمه که دعالم لیل و نهار کا

خوك به څه په چا احسان لکه دریاب کا	په مایه دسیند خلاف دسیند ګرداب کا
راښه وي کوره کمال د ستا ریبړ ئې	په ضیا د آفتاب ستر د شهاب کا

نمایان په خاص وعام لکه ذره شی ‌‌‌‌‌‌‌ چه نظر په کم ولوی لکه آفتاب کا
دحباب په شان تمام له شرمه آب شی ‌‌‌‌‌‌‌ که ئې اری چېری باد دمخ نقاب کا
نادانی گنه غفلت دو هر وانو ‌‌‌‌‌‌‌ لکه طفل دزا نگو په تله کښی خواب کا
دستگیری دلاهوخس کره تر ساحله ‌‌‌‌‌‌‌ که آسمان دی موج آسا په آب و تاب کا

زمانه ئې «شیدا» بل کااو ربه خونه
چه ممتاز لکه سحر په فتح باب کا

په سپین مخ ئې توری زلفی پیچ و تاب کا ‌‌‌‌‌‌‌ که هاله جلوه په نور کښی دمهتاب کا
په چمن چه دښایست طبل نواز شی ‌‌‌‌‌‌‌ د گلو نور نگ پرواز لکه سرخاب کا
که په داقامت ورود په بستان و کړی ‌‌‌‌‌‌‌ فواری غوندی به سرو خجلت آب کا
دواړه و روځی ئې موجونه نزول نظر کړه ‌‌‌‌‌‌‌ چه مو دخما دستر گو په دریاب کا
که وانبه د کهکشان نسی په خوله کښې ‌‌‌‌‌‌‌ د آسمان فتنه به دپیر عالم خراب کا
لکه څه په رنگ کښی و بر ښی بیانه وی ستاپتنگه خوله کښی غانښ هسی زنگناب کا(۱)

داغزل د «شیدا» زر بوسه له هنده
چه یاران ئې دوطن څه رنگ جواب کا

## ب

چه رپخته کا داخما چشمان تر آب ‌‌‌‌‌‌‌ لکه بحر شی د درست جهان بر آب
په هوا کښی دې قصور د پرواز نه کړم ‌‌‌‌‌‌‌ که می شی لکه سحاب بال و پر آب
د آفتاب چشمه ئې مه بوله نادانه ‌‌‌‌‌‌‌ ستا رخسار په انفعال کړ اخګر آب
په دولت شرم ستا نه شی راشه گوره ‌‌‌‌‌‌‌ هرگز نه اری تری دگوهر آب

---

(۱) دامصرع د «ح» له نسخی څخه تصحیح شوه ، په نورو نسخو کی دغفاښ» کلمه شته

لکه موج بی‌قرار کړم خپلو اوښو   چه می لا ندی تر پهلو شه بستر آب
زمانی خسان بالاکړه تر کسانو   چه وخس نه فرو کړی‌دی سر آب
زړه می سوی دشعله رویه دیدن نشه   که‌یه شان می شه دشمع جګر آب

«شیدا» خپله چاره وینی په‌اوبو کښی
که نن واخیست دتانوی خنجر آب

حلاوت شه په‌عالم کښی بس‌عجب   په شکر باندی شی لید مګس عجب
کرمی هسی‌دصحبت ولاړه له خلقه   چه‌له اور سره بنکاره شی خس عجب
سر بالاکړه لکه ګرد تر ګرد غافله!   نن فریاد کاپه دا لار جرس عجب
بلندی ئې دحباب په شان یودم ده   څه آماس لری دسر نا کس عجب
له‌تېزی‌دئی هیڅ غبار دجولان نشته   لکه څرخ لری کبو د فرس عجب

دسبب له پردی ووزه «شیدا» ګوره
بی حایله دګر داب قفس عجب

# ث

ایوان څه کوی په داسپنج عبث   درد سر واده ضایع دی ٬ رنج عبث
ددنیا قحبه همېش مرداره ګرزی   فریفته ئې شوې په ناز و غنج عبث
نه ئې خوری نې خوروی‌خاورې ئې قوت شی   څوك چه جمع لکه مار کا ګنج عبث
څوبه جوړی وی دړی‌مشکین خالونه   یالباس زعفرانی دخنج (۱) عبث
عاقبت به ددې نرد بازی باخته شی   چارو دو لری تل شش و پنج عبث

تنګ و تاز بویه «شیدا» په لویه دښته
شاطری کوې په دا شطرنج عبث

---

(۱) فارسی کلمه ده دنفع ٬ سود او عیش په معنی راغلې ده(فرهنګ انندراج)

## ج

په طلب کښې کړه حاصل يکران د موج ‏ ‏ ‏ په ميدان کړه د سېلاب جولان د موج

فروتن لکه صدف گوهر حاصل کړه ‏ ‏ ‏ متاع نه لري ددر کاروان د موج

زور ور دي افتاده ترگردن کشو ‏ ‏ ‏ تل په بندوی ددرياب گردان د موج

سرکشان دي مسخر د خاکسارانو ‏ ‏ ‏ زمين بوس وی د ساحل طوفان د موج

گوره کوم ساعت ئې نغاړی (۱) توري خاوري ‏ ‏ ‏ داوو په تخت زوال شاهان د موج

تکليف مه کوه دکارو نارسانه ‏ ‏ ‏ په هدف شه د آب کج پيکان د موج

مضرت د شکسته په ځان نافع شی ‏ ‏ ‏ تل به سېل وی قايم بنيان د موج

افت وخېز ددي دنياده «شيدا» گوره

دم په دم زېر و زبر جهان د موج

## ح

خو چه راشی په حرم ددنيا صبح ‏ ‏ ‏ ستر گی سري کاهغه دم به ژړا صبح

سپين لباس به ئې سياه کا ماتمونه ‏ ‏ ‏ دغفلت په اقتضاء خود آرا صبح

استهزائي به غفلت دخوا بيده وی ‏ ‏ ‏ لاد وراړه چه راځی په خندا صبح

چه بنکاره ئې بنکلی (۲) مخ دخط سبزه شی ‏ ‏ ‏ دميده شی په عالم کښې گويا صبح

نه تېر بېزی هرگز شپه په مهجورانو ‏ ‏ ‏ مبتلا ده مگر زونږ په بلا صبح

ارمانونه دعدم کا آفتاب نه دی

دوجود له لاسه داغ ده «شيدا» صبح

---

(۱) غړی - (پ)

(۲) کښلی - (پ)

# خ

دفتنو په احداث و خوږ آسمان ثرخ کدوهی زر ین لباسه سبزان خرخ
په گردش دچشم سل فتنې بر پا کا وخو ار ېز ته‌دی پیدا دفسان (۱) خرخ
همیشه لکه رشته هسې پـه دوك وی چه گردش و کا دچا په سامان ثرخ
دگرداب قطره بزر دخرخ شررشی فتنه هسې کړه برپا (۲) په‌دوران ثرخ

احتیاط ئی کړه «شیدا» له رقاصی
دپره شمع کاندې گـل په‌دامان ثرخ

# ذ

مبدل په‌دا خشك نان کړه تر لـذیذ د نظره شی په خوان اکثر لذیذ
هسې ورك شـه حلاوت له دې عـالمه چه موندا نشی اصلا شکر لـذیذ
سر دسـر وی دی فـروله انفـعـا له چه ئی ورنکړو چاته بر لـذیـذ
سنـگ وچوب په ثمر وخوری لکه‌ونه چه‌ممسك نه خوری داخپل ثمر لذیذ

«شیدا» زیست په تورو خاورو لکه مار کړه
مزعفر (۳) مه خـوره ددون پـه در لذیـذ

---

(۱) فسان هغه کانړی دی چه چاړه او توره پانډی تیره کوی (فرهنگ انندراج)
(۲) پیدا (ح)
(۳) مزعفر عربی کـلمه ده معنائی «زعفرانی» ده (المنجد)
مقصد ئی هغه خه وی چه زعفران ولری .



که چمن کا د بیاض په ګل زمین شعر — هله و بوله شا یان د تحسین شعر

په ژړا د قلم تور لیمه او به شول — چه رقم کړ ستا په غم کښې حزین شعر

په بیاض می د مخ سور سطر د او ښکو — لکه وی بحر کامل در نګین شعر

د بحور سطور ئې موج د عسل شی — په صفت کښې ستا د لبو شیرین شعر

تلون د خپل مزاج هر دم خیال کړ

په «شیدا» نشی د تا د آئین شعر



ستا مهجور له ډیره درده آه فغان کړ — که ویشنلی طوطی چیغ په هندوستان کړ

پیراهن را باندی تر لکه حباب شه — خپلو ستر ګو چه په ما باندی باران کړ

د سیلاب په یقین عین ویرانه وه — چه ګذر ئې ته زما په خان و مان کړ

ورته و ګوره سایه د مهتا بی پرده — که ئې خطاله سپینه مخه نما یان کړ

«شیدا» درست په لا دوا دردونو ډک دی

ما چه ببرته لکه زخم ستا دیوان کړ

په میدان ئې د فتنو ګلګون مهمیز کړ — چه حیران ئې د فلك تازان شبدیز کړ (۱)

د شیرینې نوم په خوله کله ځوك اخلی — نمکین حسن دی څه رنګ شور انګیز کړ

---

(۱) شبدیز فارسی کلمه ده دوی معنا وی لری. لمری د هغه آس نوم دی «چه شیرینې» خسرو ته ورکړی و. وایی چه هغه آس تر ټولو اسانه ځلورو جبه جګځ او اصلا له روم څخه لاس ته راغلی ؤ او د سری په شکل ئې صورت په ډبره کی کیندل شوی دی او پا بیستون فارس او کرمان کی شته

دوهمه معنائی «دشپې غوندی تور» (فرهنګ انندراج)

دخو نر یز په وقت دز ړه وی هغه کـانړی    چه جلاد باندی دقتل خنجر تیز کړ
دخوږو لبو چه تر یـخ کـلام و بـاسی    د نبات شر بت دي وار ه و زهر آمیز کړ
احتیاج دمحتاج ورك بلند نظر کـا    د آفتاب له چشمی جام مهتاب لبر یز کړ
مګر عید دقر بانی ئی نـزدی راغی    چه په ما یسی تلاش زما خو نر یز کړ
په دا شکر چه دنا بیمار و ستر ګـو
د «شیدا» په و بنو مات درنځ پر هیز کړ

بیادي ولي په اینده آغز بن تیر کړ    په سرو وینو دي ګرداب دنباخ رنګین کړ
دحنا در نګ ګناه په دا کښې نه وه    وخو نر یز ته ستا بي باکۍ پنجی خیر کړ
ما په غوږو اوریده فریاد دغرو نو    ځای په ځای ئي دفرهاد په غم کښې ویر کړ
دبلبل په زړه ئي کښېښول داغـو نه    چه صیاد ئي دسوخته سینې تدبیر کړ
په عالم کـښې ئي حباب تـه آسمـان وایـي
د «شـیدا» صـورت هجران پسو حقـیر کـړ

بوی په زلفو کښې زما ګـلبدن راوړه    که په دام کښې ئی آهو دختن راوړه
خاصیت لري دګـل غـنـچه دهـانـه    پس له کـاله دي څو ورځی دیدن راوړه (۱)
قطرات دا وښو تل پـه دامن جمـع    په نصیب می لکه چرخ ګریستن راوړه
چه زما په آتشـین آه نـرم نـه شه    زړه دي سخت را ته ترسنګ و آهن راوړه
شمع ځان نر مرك یخوا ژاړی عالمه    دفنا نوس په بهانه ئي کـفن راوړه
سرزنش به بیاد کوم شور پده کـاندی    د کهسار (۲) په دوړئی سنګ په دامن راوړه
دماتم لباس مي سپین په بـدن نه شه    ماد خاورو به شان تور پیر هن راوړه
نن «شـیدا» له ځـانه سـیر دی لکه شمـع
ستا مـحفل ته ئـي بـې سـره ګـردن راوړه

---

(۱) دا بیت د(ح) له نسخې څخه را نقل شو .
(۲) دصحرا - (پ)

# (ز)

په مامه کوه داد پر عتاب هر گز په اورمه سوزه د عشق کباب هر گز

چه بیدار شی په ایوان د نازله خوابه ستا تر بام نشه بلند آفتاب هر گز

چادبرق په شعله ایښی فانوس ولید نه هم مه نیسه په مخ نقاب هر گز

چه جولان ئی تل د برق هم عنانی کا نیوی نشی ستا گلگون رکاب هر گز

یم او ده لکه غنچه د خار له در ده خبر نشوم د راحت په خواب هر گز

سر کشی کاندی مخ تور د سرخ رویانو مضمر مه شه د شعلی په د اب هر گز

پوشیده ئې په پرده خپله هیچی کړه نور څه نه اری مستور حباب هر گز

آخر حد د سنگدلی دی لا تر کومه

رحم نکړې د «شیدا» په باب هر گز (۱)

# س

نفع نه کاندی غنچې د تنگ قفس پر واز و کوره د رنگ ودا قفس

آشنا ئی د زندان هم بده بلا ده په سختی به پرهیز دی داطوطا قفس

په کښې بندوم لکه بادله نه توانیه که صیاد کاندی حباب زما قفس

که په زړه کښې مرغان ځای کا په داخه شی ځنې نه مومی هر گز وفا قفس

چه په سر کښې مې تازه د جنون شور شه مگر وینی گل بلبل نوا قفس

ور کېده ئې د «شیدا» په نزد بهتر ؤ

ښه چه نه وینی عنقا د چا قفس

---

(۱) داغزل د «پ» په نسخه کې نشته .

# ښ

چه غیرت ئې پېچ و تاب په هر مو کښېښي — شانې ولې لاس د تا په گېسو کښېښي
اے دې ستر گې د آهو ښه ورته څیر شه — ستا د ستر گو شوخي داغ په آهو کښېښي
گویا بوی دیوه خار په چمن نشته — تا د گل په بستر هسې پهلو کښېښي
ثو به ناز کوې فلك ! شب هلا له — چه له خیاله ئې کلاه په آبرو کښېښي
چه اثر ئې په بېمارو ستر گو کاندې — په شرابو ئې لقب د دارو کښېښي
پېچ و تاب ئې د حسرت دې جوهر نه دې — تا چه مخ و ته مرآت روبرو کښېښي

هغه لاندې کړ « شیدا » جهان په فکر
چه ئې سر لکه آسمان په زانو کښېښي

ستا په بزم کښې مې جام د شراب وچیښي — که ساغر مې په چشمه د افتاب وچیښي
که مې توی لکه کباب کړ له خامیه — آخر ما د زړه له جوشه خوناب وچیښي
کار د اصل منتظم په نقل نشه — کوم تشنه په لویه دشته سراب وچیښي
په عوض ئې غواص در غوایې له مانه — ما که آب لکه صدف د سحاب وچیښي

که ئې خوله په دریاب کښېښوه بې نصیب دې
« شیدا » کله آب د بحر حباب و چیښي

# ض

که خونریز په تیز نگاه دې ستا غرض — شهادت دې ستا په داز ما غرض
چه نرگس په خواب و نه لیده غزال هم — ستا د ستر گو ده هغه ادا غرض
د سراب موج ئې چین د صاف جبین شي — که موقوف شي په خراب صحرا غرض
په حرج وی تل حرج د تنگ دلانو — په غنچه کاهر سحر صبا غرض

په گوښه کښې مې آرام دخاطر نه شي    چېرې ونه کا په ما عنقا غرض

له اوله مستحضر د مار افسون کړه

لغه بسه کړه په گنج «شيدا» غرض

## ط

پهرخساره‌ې جلوه گرشه مشکین خط    که قاصدر اوږو وروم ته دچين خط

په ذکاد طبیعت لولی زیر که    تل په شان دالف بې د جبین خط

لطافت ستا د صورت نقش برآب کړ    تل به نه وی ستا دمخ په نسرین خط

که زړه وچاوه قلم دماني څه شو    رقم نشه ستا دخط په آئین خط

تور اژدر دی په نسبت د همت همې    لکه و کاندې موران په زمین خط

زمانه په نه زاله اندوه زړه کړه    چه‌سحر ئې پهرخسار راغی سپين خط

«شيدا» ميل د طوطی په شکر وینم

که سبزی راوړه دلب په تزئین خط

## ظ

په دا وقت نشته دهیڅ فتح باب حظ    بسته درلری آرام اجتناب حظ

څوئې نه وی دروازه دکوروا کړې    ترهغه په جمع دل کا حباب حظ

پهاخگر بهدې همېش ایښی ځگر وی    که‌حاصل لکه کباب کړې دتاب حظ

تصور ئې کړم د آن په څو الوا نه    ترجلوه ئې دی بسیار دنقاب حظ

له نیسلی رواقه تل ستوری پر یوزی    څو به کاد بلند قصرار باب حظ

آب به څه کاد حیوان ذره جان سوزه    همېشه کا په چشمه د آفتاب حظ

کل مایه ور کړه دهوش په بېهوشی　　په غوغادې ولی ورك کړد خواب حظ

ساقی یادسوخته «شیدا» کړه په محفل کښې

له مستی دې مه شه هېرد کباب حظ

# ع

راشه واوره دشو کت هر مصرع　　درست غزل ئې منتخب الی مقطع

چه نظر ئې په شفق درنگینی کړم　　هر کلام ئې په مثال حسن مطلع

بلندی ئې د اشعار فلك سیاره　　دېر وین دودئې نظم مرصع

په کمال ئې دخیال اثر دستوریو　　څه معنی چه معنا نه وی مسجع

تعجب به په دا باب هر گوره و کړم　　که رسمی کلام ئې نه وی مصنع

رسیده ئې ومضمون ته «شیدا» گران دی

چه رفیع لکه آسمان دی بلارفع

دزبان گرم جوشی ده پری کړه طمع　　وینئې سپینی دعالم شوی لکه شمع

عاقبت به دې تنگ لاس په یسر ارتشی　　په دا باب لکه غنچه کړه خاطرجمع

کشتگان د تاد تیغ و ابد ه زنده دی　　په خونریز کښې ئې ایجاددی لکه دمع

لکه شمع د کافور هسې سر دمه شه　　هر کشی چه ئې له آب سره کالمع(١)

# غ

همیشه په وینور نگ وی د تا تیغ　　لکه سور وی هر ورځ د صبا تیغ

بې هنر به ډېر اسباب دهنر څه کا　　خوراك نه کوی په آب ددریا تیغ

---

(١)دلته دشیدا نوم نه دی راغلی .

سره جمع د آفت آب و شعله دی　　که عریان دی په میدان کښې د تا تېغ

د گلشن په شان مې رنگ په کښتن نه شه　　هسې یووم تا په شان د صبا تېغ

مقتضی ئې د همت کهکشان بولی
که اېستلی دی آسمان په «شیدا» تېغ

# ق

په هر ځای کښې وی رسوا ارباب دعشق　　پرده نه لری اصلاً رباب د عشق

کوه قاف به د شبنم په شان مجذوب کا　　که طالع ئې شی پر سر آفتاب دعشق

ورته څه وایم د دې فتنې له موجه　　له فلك سره وی سم حباب د عشق

تبدل ئې د لرزش په اطمینان وی　　هغه زړه چه کا حاصل سنجاب دعشق

خیال ئې نه درومی «شیدا» زماله دله
ما لید لی دی یو مخ په خواب د عشق

# ك

څوك چه ځان کا د مشرق په شان مضحك　　زر افشان خلعت هاله ور کا فلك

دا جمعی لکه حباب په کوم اسباب کړي؟　　چه په باد باندې ولاړ دی ستا کوشك

د هغه په حال نظر صاحب نظر کا　　چه په ستر گو کا خدمت لکه عینك

هم هغه سنان په لاس راشی و ماته　　چه کباب غوندې مې ډك وی په نمك

د جسد په پرېښول خوش سبك روحان وی　　لکه پرېږدی یونس بطن د سمك

د دې دوررا هدا رطور مبدل کړ　　مکلف ئې په حاصل کړ کاروانك

تنگول مکره هر گز دبو مردانو    شهباران کله لایق دي د مشتك

« شیدا » څه رنګ شي معلوم د آسمان غدر
څوك ئې شمس وقمر نه زدي په محك

چه آغاز کاندي طناز خرامه کبك    درازي ئې شي دزلفو دام د کبك

انتها د مینې مه غوراوه ساده!    طی به نشي کوه قاف په ګام د کبك

منفعل کړ په نو خط طرفه سبز انو    ځکه نشته په درست هند کښې نام د کبك

دقهقه خندا به پرمېږ دی لکه صبح    که نصیب لکه غریب شي شام د کبك

په باده نه شو آبېز له کم ظرفیه    نور څه نه لري بې خطه جام د کبك

تحمل ئې کا هنر د م د سختي طبع    که کهسار سره وی تلی نا کام د کبك

زما له غوغای «شیدا» له ناداییه
په منګول کښې د شهباز آرام د کبك

ل

په ناله کړ عندلیب د نوبهار ګل    څوله چه پری شوه دغنچې په خپل رخسار ګل (۱)

هر ګز نشو په احسان دپسرلي مننی    له صورته کړه پیدا دشمع تار ګل

سر سبزي ئې د بهار له ابره نه ده    په خپل زخم مرهم کېښو دهزنګار ګل

ستا له باغه خزان هسې دور تراوسه    چه شي بوټي دچکن ستا په دستار ګل

شکسته شي لکه رنګ له ناز کیه    که بستر کا درته جوړ دخپل کنار ګل

غلغله ئې په سودا و کا بلبلې    رخت چه وا کا نو نفس په خپل بازار ګل

---

(۱) څوله چه پرېږده غنچې په خپل رخسار ګل (ح)

چه پښان د بوی روان شو له چمنه    معطل به کړ په لار کښې دباخر ګل

په تدفین به توري خاوري د صحرا وي

ښه چه زر کړ «شیدا» خرڅ د خپل سر ګل

دحباب په شان پوه شه په خلل    مکره نقش په دا خپل سا ده محل

همیشه به ئې په غم کښې سر ګردان وي    که افسر لکه آسمان کړ مکلل

هسې شان ددې دکان په بازار شور دی    څه عجب شو خدواب له وضع مختل

دوحدت جلوه په زړه دمشرك څه کا    د بوټه لیده محال دی په احول

ته د هر صورت له نقشه معنی غواړې    د رخسار خطو نه نه وبینې مهمل

مکره طمع دوفا له رنګ او بویه    چه پریښان شي که نه کمل شي في المثل

سنګینې ئې د زړه نه ځي د ردمند نه دی    چه فرهاد کا په تقلید لکه جبل

لکه شمع دفانوس که به کفن شي    مرګ ئې نه وی چه ئې راشي اجل

دلاله په شان ئې نسل جبین داغلی    چه تیارې د کور ئې نه ځي په مشعل

دمیدم ئې له بازی کړه «شیدا!» ویره

فلك نه دی په خپل کار کښې معطل

## م

هسې رنګ له دې عالمه تنها خوښ یم    چه مدام لکه وحشي په صحرا خوښ یم

ترهغه چه خشك طینت دساحل وینم    لکه موج آواره په دریا خوښ یم

چه شاهد ئې له لقمې وزی مګس شي    کله زه د هغه خوان په صلا خوښ یم

چه په شان د آفتاب نه ده ګرم رو په    ستاینه سر که په سایه دهما خوښ یم

چه په قید ئې دقفس ګرم لکه رزکه    تر داهسې خندانه په ژړا خوښ یم

که بیدار لکه تصویر له خوا به نه شو

په دا حال له خپله بخته «شیدا» خوښ یم

تجرد د خپل آئين جلوه پيدا کړم　　تاريکی د کور چراغ د ديده آشنا کړم

که آسمان لکه شعله برهنه پا کړم　　په مدد د خار و خس قطع صحرا کړم (۱)

چه اثر ئی د دنيا په خالی پری نه ږدم　　د حباب غوندې په ويران کور د دنيا کړم

مکدر مې په غبار روشن خاطر شی　　زه چه در لکه ديده د ايوان وا کړم

هيڅ خبر لکه نرگس په احوال نه يم　　چه په څه چمن کښې ناست يم تماشا کړم

که په وضع لکه کوه تمام تمکين يم　　ستا په غم کښې که فرياد که ژړا کړم

تلی په لار نه شم دلار له بار کښيه　　د شانې په شان که جمع هزار پا کړم

د پير ضرر موهم «شيدا» له قيل و قاله

د سوسن غوندې به ژبه سرمه سا کړم

خو کمان لری ناوک د کهکشان هم　　تر هغه د فلک موخه (۲) يم نشان هم

څه علاج و کړم درنځ روغه عالمه!　　و ژنی ما لکه شعله آب حيوان هم

له غنچې سره تل غم د صبا بويه　　ماليدلی دی د پير جمع پريشان هم

ستا گلگون تمام ميدان گل و گلزار کړ　　لکه ابر د بهار گرد د جولان هم

د مرهم په عوض گل د مالګی راوړه　　گوندې روغ زخمی بوراشی بلبلان هم

وينې سپينې شوې د خلقو لکه اوبلکی　　خپل اجزا دی له جگره گريزان هم

د خرمن په شان ئې کيږده بې سر پوښه　　چه محفوظ دې شی په خوان مورو مرغان هم

چه دې ژړه وی پوری بند نه دی محبوسه　　آزاده ناست بی په کنج کښې د زندان هم

«شيدا» ورستوه ديوان له هنده روه ته

چه لبريز ئی به صدا شی کوهستان هم

---

(۱) دا بيت د «ح» په نسخه کښې نشته.

(۲) موخه هدف، نښه.

ور خساروته دي ابوبه رنگيني هم — یاسمن کوي د گل همنشيني هم

د آئين تهدي حيرانه آئينه شوه — تاچه هېره کړه له نازه خود بيني هم

بيا بيدا شوي شور په کوه و دشته — ليلائی کړه په ادا کښي شيريني هم

ورخساروته ئی لاس غزوي زلفي — تماشا ددي چمن کا گل چيني هم

دد وران په خوان صلاشوه هسی ورکه
چه صدانه کا «شيدا» کاسه چيني هم

آواره لکه آفتاب په بحرو برهم — در ته څه وايم چه څه سوخته اختريم

مرصع آلات به څه کړم په جوهرو — آراسته لکه مرآت په خاکستريم

هيڅ خبر په سليقه د پرواز نه شوم — لکه گل په آشيانه کښی ريخته پريم

زه به خيال د تورو زلفو آواره شوم — که آخستی توری شپي په دشت سريم

کدورت مي د صفا په صيقل ورك شو — په داچا که سينه خوښ لکه سحريم

چه کچکول و رخنی پر ودم په گوهرو — صدف په شان گدا د هسی دريم

که شعله د سوزان اور گرم روئی کا — په صحبت ئي مين شوی سمندريم

هر گردش په جگر خون کړم «شيدا» ځکه
زه له خپله زيست سير لکه ساغريم

گرفتار د تادزلفو په زنځير يم — ستا په در چه د حلقي په شان اسيريم

دا نو په بالين څوك د بيكس سر ږدي — په بستر د خاورو پروت لکه تصويريم

ځکه مالکه بانه په ستر گو وا خيست — چه وېشتلی ئي دخاص تر کښ په تيريم

خشك پهلو د افتاده گله ما پرېني — په وفا کښي لکه نقش د حصيريم

گاه دلتنگ کهي پرېشان گهي مي باد وهي — په هر آن لکه غنچه د گل زهيريم

تو گل مي نرمسی ورکه کړه په بيم کښي
لکه آب هسي په خوله کښي د شمشيريم (۱)

---

(۱) شيدا آب هسي په خوله کي د شمشيريم (س د)

چه له خپله سره تېر د کلک په شان یم  په طلب هله ددي ښکلي جانان یم

دا گرمي ستا د چشمانو د نگاه ده  چه سوخته لکه د تا سیه مژگان یم

چه خاطر مي شو مسکن ددي سبزانو  را ته وگوره یو توی هندوستان یم

د شانې په صد پاره جگر قسم کړم  چه په غم کښې دي تر زلفو پرېشان یم

د خزان له ترسه گل ته کښتې نه شم  په دا باغ کښې لکه بید هسې لرزان یم

که پرواز مي په هوا دی رها نه شوم  مطوق د هغه سرو خرامان یم

د غبار په شان ئې پوده م پروا نه کا  دامنگیر د هسې شوخ کرم جولان یم

په هندي ادائي و کړې په ما چارې
زه «شیدا» په زړه ساده د روه افغان یم

هغه دم به ئې تمام زخم بهم کړم  که بسمل ته ئې یك ندوخ مرهم کړم

د مژگان په شان مي ځای په لوړ ابرو کړ  چه گردن په تواضع د هغو چلاخم کړم

خپل وجود به لکه شپه مکدر کړې  و عدم ته ئې آرزو د صبحدم کړم

توري مځکي شي د هند په برسات کښي  په ژړا چه ستر گي تري د مېدم کړم

څه عجب لکه قطره چه د رباب نه وی  که په خپل زغم کښې ځان محیط یم کړم

د حباب په کور مي آه کا انتې بلې  چه بیان د جدائی غم و الم کړم

لکه زلفي په بیاض باریك مضمون زدم
زه «شیدا» چه چېړي ساز مشکین قایم کړم

له حسرته د فلك خاطر پرخون کړم  چه خپل جام لکه خورشید گلنار گون کړم (۱)

د صدا په شان ئې بله صدا نشته  چه رایاد په زړه فریاد د بېستون کړم

چه په وصل کښي ئې سر خوړم لکه شمع  به ادائي د شعلي گنه مفتون کړم

---

(۱) گلنار گلگون کړم (ج)

(۲) به ادائي د شعلي مگر مفتون کړم (پ)

تر هغه چه سر د جوشی د خنا و بسنم    خوښ په طور د شمع بې دست و پایم

آمېزش مې لکه آب د گوهر نشته

«شيدا» كله له ساحل سره آشنايم

(١) . . . . . . . . . .

په گداز كښې مې د ننت ځان يوه قطره كړ    چه شبنم غوندې له گله هم آغوش يم

هيڅ غوغا د بزم نه آرزم په غوږو    شيشه وار د بېهوښئ پنبه در گوش يم

لکه مړه بانئ د شمع په محفل كښې    خود بخود په خپل ماتم كښې سيه پوش يم

تشنگي مې د ځگر په ميكده ځي    د ساحل غوندي له عطشه دريا نوش يم

«شيدا» زه د خيال فانوس كړم سر د مهري

چه قربان تر هر چراغ د گرم جوش يم

كه د زړه په چوڼ جام غنچه واز موم    انتظار د ساقي اکرم باده نوم

هيڅ خبر لکه تصوير له ځانه نه يم    در ته څه وايم چه څوک يم يا څه نوم

زه «شيدا» خپلي هستئ لكه برق وسوم

و ذيار ته د فنا په خندا د ومسم

چه هر دم په زړه اسپږن لکه حباب كړم    د پري او ښي گهي جوي گهي دریاب كړم

ذره نشوه د آفتاب په چشمه گده    د شبنم په دود به ځان قطره د آب كړم

تل په سنغ د روځي او به د بالا د ستو    چه نظر په فواره ياني په داب كړم

چه پر پوزي ئې هر دم د خوناب څاڅكي    عجب برق لكه شحاب په زړه كباب كړم

د درويش قهر هميش په خپل صورت وي    خدا له جوړه چه په خپل خاطر عذاب كړم

---

(١) ددي بدلى مطلع لاس ته را نغله .

څه راحت موږ له دې سبزه کوشکه — زهیر ګوره باد باران ګرم آفتاب کړم
نا داني ګـنه غفلت در هـروا و — لکه طفل د ځانګو په تله کښې خواب کړم

تنګ چشمي نه ځي «شیدا» په زرداري
د غنچې امثال به زر درنه حساب کړم

په نرمي د سر د ښمن د ځان د مساز کړم — په سیلاب لـکه حباب عمارت ساز کړم
پر و بال د تعطل په آشیان پر ښږدم — لکه رنـګ د رعنا ګل هسې پرواز کړم
خورشته ویښم په دوك د چرخ له جوره — چه په شان د ګهر درد ګنبد باز کړم
که وېل رانه ضرور لکه نـامه شي — په زبان د غیر خپل کلام آغاز کړم
۱۰۰ دفرهاد په غم کښې هسې کوهسار زاړه ی — چه ګمان ئې په دامان د زېر انداز کړم
د کې سترګې په غبار لکه باد دروم — چه په طور د کورانو تګ و تاز کړم

مـایلدلی دي نشیب په هـر فراز کښې
اعتماد به «شیدا» څه رنـګ په فراز کړم (۱)

# ن

منور په خپل مقدم کړه بام و صحن — د بهار سپیده دم کړه بـام و صحن
سترګې سپینې په کاته د مهر و ماه شوې — جلوه ګاه د خپل حرم کړه بام و صحن
یوه ورخ لکه آفتاب کړه نقاب لري — شعله زن په کل عالم کړه بام و صحن
آزاده لـکه حباب د تند سیلاب شه — په یوه زمان برهم کړه بـام و صحن

(۱) دا غزل د «پ» په نسخه کې نشته .

چه دې دفع پیچ و تاب له کړه کرد بادشی په افراط د تعجیل سم کړه بام و صحن

فرض کړه ماه بلند آفتاب بې زوال هم شته تر آسمان ترمز کې کم کړه بام و صحن

«شیدا» والې ئې تکلیف په زازله زدې

تـه یخپله منهدم کړه بام و صحن

# و

چه همت مې نکاو بر په هسکو لـو لکه موج نکړمه بیم له پر بو تلـو

سوال مې خوی له در افشانه ابر دنه دی صدف وار انه خپله خوله کړه په غو بنتلو

د آفتاب په کمند نه خېژم آسمان ته نه زدم بار لکه شبنم په دوش د ګـلو

په کمال د جمعیت کښېږې پریشان یم په مثال یـوه دسته یـم د سنبـلو

لطافت مې د مزاج تر غنچې تنګ کا په چمن کښې که فریاد وی د بلبلو

له آسمانه به فی الحال داشی ترمز کې که مې کېږدی سنګینی چېرې په تلو

د آزاد و لمن کله په خار نښلی د نسیم غوندی ګذر کړم په ځنګلو

مروت که په سر ځای د نشئت را کا سر فرو په تواضع کړم تر کـا کـلو

په داوقت کښې که «شیدا» دوایره مهمند وی

ثنـا خـوان بـه رو هـردم ستا د ویلـو

مانې شوې له شرمه داخولې په ګـلو که جاری دی بیا د باغ ولې په ګـلو

انفعال ئې چه نافع و ستا شوخې نه جلوه ګر شو د نامخ ولـې په ګـلو

لکه شمع په ګـل سر پریکړه بلبله! که ګـلچین رایشی داخلی په ګـلو

په چمن کښې بې تاسو زم لکه شمع چه مې تل لګی د آه شعلې په ګـلو

په دالور مګر خزان کړ عنان ګرم چه ژړا شوه د شبنم ولـې په ګـلو

خور بده د دې مسکن «شیدا» معتادی
ته په شان د رنګ وبوملې په ګلو

په غنچه کښې دقفس لکه ګل تنګ و — چه د برق په شان روان بر بد ترنګ و
تر عنقه په جهان نه و شور د مینې — څوئې حسن آسوده په خپل فرنګ و
په شفق ئې د حنا آتش زنی کړه — عنقه شوخ لکه آفتاب نګار بن چنګ و
سنجده ئې کړ تمکین د خپلې وضع — بیستون ئې په میزان کښې نن باسنګ و
لکه شمع دجولان په محفل ګاه کښې — د ګرمۍ په شعله بوز دنا سرنګ و
تا چه بزم کړ روشن لمحا آفتابه ! — په داشپه دصبا ستر ګې شب آهنګ و
چه وصال دې و سوزان تر جدا ئۍ — ستا جمال لکه شعله زړه مې پتنګ و

اوس ئې بل په سر وابر و نشته عالمه
آواره «شیدا» د څه دونې ملنګ و

ستا مژګان هسې لیده شي په چشما نو — لکه ولګې ناوك په آهوا نو
تر مرئت مې ګوهر صاف دی که انصاف وی — ولې نشته بصارت د جوهر یانو
دسیلاب موج په بند د ګرداب کېوزی — په نرمۍ کوم تسخیر د تند خویانو
دصباح حرج غنچه پریشانه ګل کا — زنهار مه کوه غرض په تنګدلانو
دژوند یوغم ، بنادي را معلوم نه شول — بېکسۍ کړم په شماره دمرد ګانو
په عمیق نظر شعله ګوره د شمعې — دمیدم کېږي پستې د سر کشانو

رنګینې ئې داشعار تر حنا زیب کا
د «شیدا» دیوان په لاس واخلې خوبانو

وبورجل ته مې دلدار راځي په وروورو — که چمن ته نو بهار راځي په وروورو

وار په وار ئې التفات دستر گو وینم
ته به وایې چه بیمار راځي په‌ورو ورو

تر بلا د بلا بیم کشنده تر دی
وخو ار یز ته‌مې خو نخوار راځي په‌ورو ورو

څکه زړه که دقهقې په خند اشنه‌شو
چه په بنکار ئې خوش رفتار راځي په‌ورو ورو

جدائي مگر فرهاد پر پوست له برمه
چه فریاد ئې د کهسار راځي په‌ورو ورو

تر تمکین لا ندې مې تاب د گلګون ورك شو
هغه ترك شیرین کار راځي په‌ورو ورو

«شیدا» هسه کوه کلام بې تأمله
هر طرطی په بنه گفتار راځي په‌ورو ورو

بنا گوش ئې هاله‌ساز کړ صورت گرو
چه مخلوط شو په‌رنگ آب د مرغلرو

نمایان ئې په‌داوقت شیرین لبان دی
که‌اب ریز ئې تنگ دهان دی په‌شکرو

خاص‌وعام په کار کښې تن‌ور کا هغه ته
چه دسروی پشان لاس ئې وی دزغرو

بلندان ددنیا پست دی که ئې‌وینې
نکړ هسك له‌مز کې سر لوړو کمرو

نرم هاله د تو کل لکه گل آخله
که آشیان کړ درته ساز خپلو وزرو

د حباب په‌دود ئې داق له شرمه آب‌شی
چه نظر کا په افعال د قلندرو

دهر کس چه‌خواب ضرر کا «شیدا» بویه
لکه بخت هسې بیدار د بختورو (۱)

کړه هراس د تیغ د تیر له همنشینو
دوامه ستر گی زخمې کړی دی قرینو

په گوښه کښې د کمان وصل آفت دی
ناوکې گوره ددې خلوت گزینو

د نیام په‌شان ئې تیغ بوسیده را وړه
الامان دتا لـه دې تنگو آستینو

دوامه کسې ئې په‌رنگ لعل و یاقوت کړه
لکه غرد بدخشان ژامه پـه وینو

په رخسار ئې نن قطره دعرق وینم
که‌ئې برق شو دخرمن له دانه چینو

(۱) ځایغنیك د «پ» په نسخه کې نشته .

وی مدام په شان دشام لـکه تورسوی — چه سوخته شول په نـگاه د ماه جبینو

له سختئ ئي آفت زیات دنزا کت دی — بې په طـو دمینـا لـه دل سنـگینو

چه پر گـنج ئي مدام ماروی لـکه شمع

اور ئي ولگه «شیدا» په سروو سپینو (۱)

دشبنم دانه کـه تخم شی د گـلو — زده به سوند په دیدن نه شی د بلبلو

چه ئي نشته لکه گل ښه رخسارونه — څوك به څه کـا توري زلفې دسنبلو

په څه شان درته بیان سوي طالع کړم — لـکه نمر لحما جبین دی د داغـلـو

معطل په عارضه د شـام غریب دی — که می زده په حلقه بند شو د کـاکـلو

د آسمان په شانې تیز دفتنو تیغ کړې — صبح وشان کرزې ښکاره په سرومنگلو

ددریاب له سر دجوشی دحباب زده چوی

«شیدا» قطع دامید بو یـه لـه خپلو



اکه برق چه گرم و گوری ناگـاه — سره لمبه شی په هغې اوری نـا گـاه

ستادزلفو هیبت باد په تپښت روان کـا — دښامار په دود چه و ښوري نـاگـاه

لکه شق دقلم زده د«شیدا» وچاود

چه ښکاره شول ستاد خط توری نـا گـاه

گرم نان لکه آفتاب مه زده بې آ به — چه سینه دې دمېلمه نه شی کبـابه

زنـگ دنایه آئینه دصیقل کبار کـا — ای دبخت په روښنی لـکه مهتـابه

حرکت دې دنفس په نری بـاد دی — همیشه لـکه ورق پادرزکـابه

---

(۱) دا غزل د «پ» په نسخه کی نشته .

انهدام ئې دسیلاب په صدمه نشي    چې خالي دي خپله خونه کړه حبابه

د گدا په راحت کله شاهان پوه دي    ستر گی کله وی خبر د ښيې (۱) له خوابه

د ناقص په قیل وقال د زړه سیاهي ځي    د هلك په شبه حرف ځي له كتابه

كه خجل نه كړ زړه اد «شیدا» ولي

خولي ماتی په شبنم شوي بې آفتابه

كه حجاب له مخه لري كا محبوبه    په آسمان كښي به سپوږمۍ كاندي محجوبه

د نرگس دستر گی گل كله معیوب دي    سیم و زر كاندي زشتي د هرچا خوبه

چه طغیان وكړ دریاب زما د او ښو    سفینه زما د زړه شوه په كښي ډوبه

په چشمه به د آفتاب سر سبزه نشي    د شبنم دانه ئې ولي كړه مجذوبه

زما نه د «شیدا» هسي ځان ځاني شوه

چه بلا كناره دروي له ایوبه

د تا لطف مې كباب كا بې غضبه    لكه برق په خندا راشي میگون ابه

احاطه د نوي خط ده ښكلیه مخه!    كه په خوله كړ اژدها ماه نخشبه (۲)

چه ئې جمع له ژړا سره خندا كړه    ثوك خبر دی بی مینا له دې مشربه

«شیدا» طول د امل و گوره حیات هم

فسانه د راز نه بویه له شبه

څه بیان د هغه ناز كوم و چاته    لكه گل د شمع نه خاندي صباته

كړه ئې خونه مشاطي د زلفو ماته    پریشاني ئې شوه په دا ترحده زیاته (۳)

د مین له دله رنگ و نگار وزي    هیڅ نسبت د میني مه كوه حناته

كله پرهیز دی د مرآت خودنمائیه    چه ئې كښېنږدي بونفس و خود آرائه

---

(۱) ښيې (اسي)

(۲) په تركستان كي د یو ښار نوم دی ( برهان )

(۳) دا بیت د (پ) په نسخه كي نشته .

چه په طاق دنسیان تل دزړه مینا ږدی ... خـه امـید کوې وهسی دلخو بـا تـه
زړه لاما هسی رخسار په جلوه یو وینه ... چه ساده وایی دبـاغ گـل رعنـا تـه
حقارت دافتاد کړه گـردن کـشه ... راغی غرامن په غـاښ دخـاك پـا تـه
په صورت ئې لـگی اوږ له خپله تنه ... چه ظالم لحی لـکه برق تحت الثری ته

بیماری به د نرگس کـا «شیدا» ورکه
که ئې واشی دنـگاه دار الشـفا ته

آماده په هسی شان یـم وسوختن ته ... چه شی برق د صورت بربنې ز ما خرمن ته
کـار پخپله تردستی لـکه حباب کړه ... چه محتاج دخیاط نشې پیرهن ته(۱)
حوصله می خوشه واروی تل لبریزه ... که پرواز نـکړم هر گـز دانه چیدن ته
زبا ندان دهر زبان په هسی شان وی ... چه لحواب په ظرافت کـاو سوسن ته
نامور به په جـهان شی تر شیر ینی ... که تیشه ور کړی بودم دخپل کوهکن ته
په گـلگون سرشك می رنگ لـکه غنچه کړ ... هله جوړ شوم د گریوان وه ریدن ته
دصبا په سعی گـل دمالـگی څه شی ... گـله جوړ دی ترش جبین وشگفتن ته

خو په بخره ئې زړا لـکه شبنم وی
چه «شیدا» ورشی بې تاچیری گـلشن ته

ای دخپل نازو ادا په بـاده مستـه ... تاد زړه شیشه پری نبوه بې شـکستـه
څودې نه یم دشعلی پـه شان وژلی ... خلاص به نکړی خپل دامن زما له دستـه
هیڅ خبر لـکه تصو ر له لحانه نه ده ... دافرقه په یوه آن کښې نیشت وهستـه
پر یشا نی شوې دتا مشکـینی زلفی ... کـه عالم شو دختن بـې بنـدو بستـه
دماهی په شان نیاز خسته نخچیر شی ... لا وتلی نه وی نیـو دتـا شـلته شسته

(۱) چه محتاج دې خیاط نشی پیرهن ته . (نسخه)

وخپل لخانته نګران لیل و نها ریږي به مثال د بـر همن صورت پـرستنه

له «شیدا» دهر سحر په زړه غارښه شـئ(۱)

د تـا مـخ ورتـه ستـا یـی مدام لـه قسته

څه حاصل د ممسکانو لـه دو لـته داشعار بحر وی تـل بـې تـر اوته

خود بینی کـله شیوه د صاف طینت ده ستر ګی نه دی هیڅ آ ګاه له دي رویته

سر ګردان کـاندی ګرداب خلاف د بحر پیـروی ده د کـلان بـې مضرتـه

د زوال علاج هر ګز نه شی په زور آفتاب و ګوره چه پریوت له رفعته

دمر آت غوندی جو هر په ابرو ور کا کـله فعل د صاف دل وی بـې حکمته

چیری نه چه دار محروم په میدان پر یږدی که یو سر په تـن لـری بلند همته

په ذلت کښی می عزت د ار تفاع دی کـه می خـوك لـکه غـبار وهی پلته

همیشه وی نرم چوب غذا د ګرم

«شیدا» مه شه مر د خالی له سیاسته

په نهاد دهر سړی کښی هـنر نشته دزانو په آئینه کـښی جوهـر نشته

کـله جمع د تو بـی آزاده کـاندی په ښاخو نو کـښی دسـرو ثمر نشته

د بنایه تخریب زړه دسیلاب سو ره شـی د ظـالم په زړه در حـم اثـر نشته

د جنوب تر ژولیده و پښتو می لخار کړه که د بید په شان می تـاج و افسر نشته

په خوږه ژبه(۲) مرغوب لـکه طوطی شه که قدرت دی په عطا د شکـر نشته

قد مبوس به ئـي افسر د قصیر و کـا چه سیلان ئی لـکه آب د ګوهر نشته

(۱) که شیدا دی هر سحر په زړه غارمه شی (ح)

(۲) په شیرین کـلام (اس)

د همت علو د غیر احسان څه کا　　　د بنو سا یه به ستر ګو د نمر نشته

«شیدا» آب ئې دجودت هسې رنګ تېز دی

چه تسکین تر هغې د طبع لمبګر نشته

هېڅ نقصان د ساده حسن و جمال نشته　　　د آفتاب په رخسار هم خط و خال نشته

چه بدل ئې به کچکول د مهتاب خوان کړ　　　اعتماد د زمانې په کمال نشته

زنبیلو لی زما نې په کوم سبب یم　　　لکه ژبه خو د زما پرو بال نشته

د کجال لکه نې کوره شوخې ستر ګې　　　په داسې خوبي ښاخ د غزال نشته

هر ملار ئې از دهادی جهان نغري　　　وبوږچل ته ئې د هر چا مجال نشته

چه کړه ئې د کوکب د کار واکړه　　　ولې نه وار ئې ناخن د هلال نشته

افروخته وی په کښې تل د حسن شمع　　　دخاطر غوبري فانوس د خیال نشته

«شیدا» ګوره هر طرف ګلګونې اوبنې

هېڅ خندا په داسپار کښې لمسال نشته

یاتی نشوه په علم کښې سرشته　　　طاوس په تخم د مرغانو شی کشته

د ګوهر دانه په لاس دشواظ(۱) راغله　　　د جوار په شان به زر شی برشته

د سختې په پېچ و تاب دمر د نرمی ځی

چه په دوک شی پنبه ځان کاندې رشته

دوانه لب دی په ګفتار کړه خله بېرته　　　که طوطی راغی و قند مکرر نه

دحیرت جوهر نصیب د تیره زنده وی　　　د فولاد بیضه کجا آئینه څرته

په عطائې فی الحال واکه صدف کړه　　　لاس چه و نیسی محتاج د تاو در ته

(۱) داور ملبه (غیاث اللغات)

و کاکل ته دي کافي د رخسار گل دی — حاجت نه لري و عطر و عنبر ته

نه کا شرم دیده واز له سر بزر گه — بیرا بیر گوري مرآت و سکندر ته

آفرین د هغه سر پسه عریانیسه — چه فرو نشه دستار و یا افسر ته

د سیماب غوندي اگر یه ز کاله گرمیسه

څه و ننگ راشي هغه شوخ د «شیدا» بر ته

دجهان د کرم رو دستا و اوو ته (۱) — لکه شمع نامه وسپارم وا ورته

پادشان به خالي لاس ورځني د رومي — تهي دست لکه حباب راغلی و کور ته

په مردان د بل په کار تمام مصروف وي — بي کفنه لکه گنج د رومي و گورته

هر ساعت وي تر دور ننگ له حجالته — راشه و گوره د ستر گو سپين و تور ته

له تلخئ ئي جام نسکور لکه حباب و دم — چه راغلی یم و ډي دریا ئي شور ته

مگر ته د خپل صورت په تزئين راغلي — لکه تار د کشیده و دي انځور ته

دخدمن د پیری عقدي په آسیا حل شوي — په یوه عقده ئي گوره نا قص مور ته

د «شیدا» نازک مضمون کودن ته اوالي
دهلال رویت دي و سپاره شبکور ته (۲)

ماچه شاکره دد نیا و خان و مان نه — څه حاجت لرم و نور سرو سامان ته

شکسته به دي جبین وي تل بي چینه — حوا له کره د اغمونه و خاقان ته

خونخواري د خپل جگر په ډیر راحت کړم — هرگز نه راځي مگس زما وخوان ته

په رضائي بودم ایست په چمن نه وي — نه په چلاس و اچاوه خارد گل دامان ته

ستا د زلفو په لو ز نه خرام کاندي — که د روم قافله دروي هندوستان ته

(۱) دجهان له کرم رووستارو لورته (اس)

(۲) داغزل د(پ) په نسخه کي نشته

ستا چشمان په څه نګاه کا په خاکسارو          چه له کبره دې بانه ګوري آسمان ته

مبارک شه پسرلی تا د د نیا خلکو ته

آواره «شیدا» روان دې بیابان ته

بربر راشه د بهار تازه بسنته (١)          تا نشاط راوړ و هر د بنته و چمن ته

لباس هسې د علم زعفرانې شو          چه هر ګل په خندا راغی د ګلشن ته

لکه مرغ د تنګ قفس شیدا بلبله          په بیضه کښې کا هوس د پریدن ته

لکه نمر چه د غروب په هنګام زرد شي          ګرمنظر په دا لباس کښې ګلبدن ته

ګل دسته په لاس تار دهر سیاح ز دي          صحرا ته چې ګلونه خپل دامن ته

د بلبل خاطر مایل په رنګین ګل دی          که په جام راغله مینا باده ریختن ته

برق چه و ګوري د ګل رنګین خرمن ته          له خجلته ئې باران د عرق او وری

ناظران د دي بهار په شان د ګلو          هیڅ محتاج د عطر نه دي پیرهن ته

مغنی کا د و با لا نشه د مېو          چه مستان کښېني د بزم آراستن ته

«شیدا» ولې ئې صدف د محیط بولې

غوږ نیولی دی ګوهر د ستا سخن ته

چه تکلیف ئې نه وی هیڅ د تیغ چوګان ته          لکه ګوی یې تنه سر وړم و میدان ته

په سوخته سینه ئې ما ته ګوره بلبله          که غنچه راوړې بیضه د ګل آشیان ته

چه دا نه مې لکه ګل په خرمن اشته          د آسیا د پاره څه وایم آسمان ته

کشایش کاندې خاطر د هر چا جمع          آشفته زلفی په مخ راشه پریشان ته

ګل رخان له آئینې روګرځان نه وی          ولی نه ګوری نظر و خپل حیران ته

---

چه ئې سیر په تما شا نه شي د پر عمر          د آهو ستر ګې پیدا کړه بیابان ته

«شیدا» تل وی ګلنار ګون په خونین او بنو

زه چه ګورم لکه صبح چاک ګریوان ته

---

(١) بسنت په هندی ژبه د پسرلی موسم ته وایی.

هستي زورو کړ سودا په ړنډوا دلته (۱)　　چه پر شور لکه بازار شو صحرا دلته

تغافل ئي د نګاه کشنده تر دی　　به هدف لګی هر غشی خطا دلته

له شوخۍ دي دلبانو عجب نه دی　　که له ډېره شرمه آب شوه صهبا (۲) دلته

ځي به بيع د او بوله ډېره آ به　　هر ګز نشته د ګوهر شناسا دلته

که ئي وويني کبکان سختي د طبع　　به کهسار پوري به وکا خندا دلته

عاقبت به توري خاوري د ميدان شي
تل به کله وی جولان د شيدا دلته

نشته هيڅ په عشقبازۍ کښې د چا ګټه　　سر به بو نسی د دي سو دا له هټه

چه له تنه دي ايري به تن پيدا شي　　ځان هله بوله ملنګ لکه سکروټه

که شربت د نيلوفر راشي په جوی کښې　　روغ به کله شي نرګس د باغ بې وټه (۳)

نه ئي دروند په شان (٤) د ګلو ګل اندامه　　د غنچې په طور خوب کوه بې کټه

تا به وي د برسات جهنده برق دی　　چه راغلی په شوخۍ وه ترين کهټه (٥)

ګوره زور د افتاده چه تور و خاورو
«شيدا» غريبه تنمی وا خيست لکه ګټه

څه افسون دی په ما وکړ پر يزاده　　چه بودم نه يم خالی د تا له ياده

زړه مي ډک لکه سپند دی شعله بوېه　　چه دزړه به مراد و کړم څو فرياده

بهانه دي د غرض مګر شانه کړه　　نه ئي لاس ور وړې وزلفو ته شمشاده

چه آواز دي د تيشي په کهسار نشته　　د شيرينۍ په طلب لاړې فرهاده

(۱) داغزل د (پ) او (ح) په نسخو کی نشته.
(۲) انګوری شراب (بحر الجواهر).
(۳) عيب او نقص.
(٤) په شاخ (ح)
(٥) تن هر ګټه (ح).

به اسباب کښې مې زړه بند په اسباب نه دی  د چمن په قید سر وه ده آزاده

نتیجه ئې د دیدن عظیم آفت دی  لکه برق شعله په لاس ووزی پیداده

چه په هر منزل کښې سرخوری لکه شمع  د هغه رهرو څه نفع ده له زاده

مهیا ور ته قفس د شاخ گل کړه  که څه رحم په بلبل کوي صیاده

په سختۍ کله امساك د دولت کیږی  جوهر نه ځی په هیڅ وقت کښې له فولاده

همیشه ئې پیچ و تاب لکه جوهر دی
چه «شیدا» راغی تر دې حیرت آباده

چه لمبو ته د تنور په شان پیدا ده  که پوهیږې داسوخته سینه زماده

لکه ابر په هیڅ وقت نه شوې بې نمه  هر ساعت زما پرسترگو کښې ژړاده

خوش په شور لکه ساحل د سیلاب نه یم  چه مې ایښې په عزلت د کور بناده

په سپین مخ ئې د عرق دانه لیده شی  دسحر په وقت که سترگه دصباده

فیض ئې نه ځی د همت په تنگدستۍ
خود لیدلې فواره شاه و گداده

څه دې زده لکه نرگس زماله درده  یو شیده مې په غنچه کړه گونه زرده

په رښتیاوی هر فریاد د سوختگانو  د سپند ناله له سوزه په مجمر ده

اوس د ښکلو په طلب کښې صادق لیده شی  د قلم غوندې بې سره روره ورده

داوبو په شان روان په هسې لار شه  چه دا سپینه لمن وساتې له گرده

په کښې عکس دخپل جام نهایت وینی  آئینه چه نن په لاس د سکندر ده

د دوران په سېر د جوش کښې عجب نه دی  که لاله غوندې لمبه شی داور سرده

«شیدا» زه ئې منتخب د پښتو بولم
که دیوان دی مرتب دی په څو فرده

کړې چاپه خپل هنر خود نوازي ده — په محمود پاندې موقوفه ايازي ده

د دنيا نعمت ذليل کړي لکه زر ی — په خروج ئې له ميوې سر فرازي ده

زه په سل مر که يم مړ په ژوندانه کښې — هر نفس مې لکه شمع سر بازي ده

د هدف په شان مې آه تر خولې و نه خوت — که زده کړې دې په ما تير اندازي ده

په ژوندون به لکه شمع دلسرد نشم — چه تر مرګ بوري زما جانګدازي ده (۱)

راست روئي مې لکه رخ نه ده پرې اېښې — که فلک را سره کړې کج بازي ده

د يتنګ غوندې ئې تل په ما غضب دی — چامې کړې شعله خو ته غمازي ده

راست ګويان لکه مرآت «شيدا» حيران دي
په هر لور د زمانې سخن سازي ده

داد خط جلوه په مخ د دلستان ده — حاشيه که په نسخه د ګلستان ده

تلون ئې د مزاج دی شام و صبح — خاص و عام ته ښکاره وضع د آسمان ده

ګشايش دې په ګردش تشي آسمانه — د پرو بن خوشه لا بنده غنچه شان ده

د حيوان چشمه ئې بو لم آسان نه دی — که جرعه ئې د ساغر ښبلې نادان ده

د د يکدان شعله ئې برق په داساعت کړه — د خرمن مايه سيا تلې غله دان ده

سياهي ئې د چشمانو په شوخی کښې — د غزال سايه پرته په سپين ميدان ده

په ميدان د درياب ګوی «شيدا» حباب وړی
مباوي کمال خوبي د کتوم انسان ده (۲)

د ماهي غوندې سينه په خار افګاره — هيڅ خبر نه يم له ګل و له ګلزاره

تپېدن مې د شمعک بسمل بې تيغه — د خونريز توره بمخه ګوي آبداره

لکه نخل د بلغه په جويبار خشک يم — نه او نه ايد برګ و بار له نوبهاره

---

(۱) دا بيت د (ا س) په نسخه کې نشته.

(۲) دا غزل د «پ» په نسخه کې نشته.

سرمې هیسې په صحبت د تن زهیر ؤ          چه هر گز ور ته وانغې پیاله داره (۱)

ستر گې پورته په اداز ما آفتاب کړې          که فتنه شوه د سحر په وقت بیداره

همیشه سیه لباس چشمې داو بنو          د فرهاد ماتم په څوك کا بې کهساره

په ماباج د سلیمان لکه مور نشته          په یوه دانه قانع یم له خرواره

اوس گردش بویه په کام د شیدا څرخه

هر گز نه گوزي آسیاد چابې واره

راشه نن په تماشا تانه بهاره!          چه گلشن در ته پیشکش کا یو څو هاره

ستا همت خو قدم بوس د آسمان غواړی          که دې عجز ور ته نه رسی غباره

رهائی دې بېهوده گرزي په خیال کښې          دم په خو داوسه د زلفو گرفتاره

ستا دستر گو په گردش مې خاطر بند شو          نقطه څه ر نگ ځان بدر کاله پر کاره

په شر ردې د نال سوزی زماخو په          څه خو نیسه عنان د ناز شهواره

د هر خط مضمون احوال د خوار فرهادو          چه قصد د زړ گور او په له کهساره

څوك و شمع ته ور در ومې بې پتنگه          لکه برق شعله په لاس ځې ستمگاره

څرخ هله د چا په کام د څرخ آسیا خوری          چه میده کاد سرو نو څو خرواره

سبزان کله وی همسر د گل رخانو

بېهوده راغې «شیدا» تر هندو باره

بیادې مور کړه شمع خو یه په چا بوره          چه دې کښېښوه او زه باندې سره توره

رنگینې ئې په خون ریز د دیر عالم وه          ستا المن ده لکه گل په تختو گوره

په هزار نیشه د زړه په سر چیچل کا          الغیاث د تاد ستر گو له زنبوره

همیشه لکه نرگس گورې آسمان ته          ای د ستر گو په بنایست باندې مغروره

---

(۱) دا بیت د (پ) له نسخې څخه را نقل شو.

ز غول می لـکه نی مصلحت نه دی — په‌سینه کښې‌می ناله پرېږده مستوره
په‌جبین دې همېش چین‌داندوه وینم — ماخوشحال چېرې و نه لیدی فغفوره
نادانی‌ درته بیضه وسیع جهان کړ — دهـوا په طیران پوه نـه یې معذوره
ددنیـا پست و بـلند واړه تـېر یږی — څـه چـاره دموج دبحـرلـه عبوره

تادزړه په‌صاف دوربین کښې همېش وینې
کـه هرڅوئی له «شیدا» پـه‌هـوادوره

تهیه به د اسباب څه کوې کوره (۱) — یو مس لـکه‌حباب را غلې تر کوره
په قرار کـا جاذب خاك دنم‌غو کونو — چه‌په‌دادریاب کښې‌هیڅ نشته بې‌شوره
دماتم په خونین او بولعل کون دی — څوك به‌څه‌وړی‌دیان بر ک تر لب کوره
په کـثرت‌مې دشستن کله‌ځان‌سپین کړه — لکه‌سنر کې‌چېرې‌خلاص نه‌یم‌له‌توره
ازاله مې د ګرمی‌ ساقی په‌آب کړه — سوی زړه لـکه شیشه‌را غلم له‌اوره
هیـڅ خبر په حلا و ت نه شوم د میو — دآسمان پیاله په مارا غله نسکوره

چه ئې لاندې بحرو بر کړ «شیدا» واوره
همای کـله په سر وکړ د نمر سیوره (۲)

ګرمی نه کوی اثر په هرچا کوره — په شعله کښې‌ده‌چشمه د آفتاب موره
بر ګـو بارورته پېشکش لکه بهار کړه — که خزان راشی کړ یمه شفاتر کوره
مناسب له کـارو بار سره تدبیر کړه — کـله‌درومی په‌آفتاب دیری سیوره
ستوده به به تمیز لـکه مهتاب شی — چه‌جدا کا و شغی له تنده اوره
چه به ورځ لـکه فلك‌شمع‌سوزی کـا — درسته‌شپه‌ئې‌تیاره‌نه‌درومې له کوره

په فنادې خندا ورك رو غن ګـل شو (۳)
زمـانه به هسې شان د «شیدا» سپوره

---

(۱) داغزل د«پ» او «ح» په نسخو کی نشته .
(۲) داغزل د «پ» په نسخه‌کی نشته .
(۳) په فنادی دخندا روغن ګـل شو (ح)

آراسته یی په داخپل حسن دلبره — ښایسته وی گل په باغ کښې بې زیوره

نه په دالب و دندان آئینه رویی — که مرادا لعل و گوهر وی له جوهره

که دا نه دي په دپر آب نشوه سرسبزه — شکایت د بهار نه کوي گوهره

له افسر سره ئې سر لکه حباب ځي — نه شي زیست دخسروانو بې افسره

په خوبانو شی خوالی له حیا ماتی — نه چهاری کړي نقاب رخشانه نمره (۱)

هره ورځ دي تیغ رنگین لکه سحروی — مگر تل دخونریز مشق کړي کین گستره

ستا په ښاخ لکه غزال دخزان څه دی — که خالی وی د بهار له برگ و بره

حلاوت د موزون قال په راستی در ومی — همیشه وی د باغ سرو بې ثمره

ستا په ملا کښې دی کمند دزړونو تنگه — که دي راغلی توری زلفي تر کمره

چه لیده په کښې اثر د لمنه شی — څه حاصل لکه شبنم له چشم تره

چه موقوف ئی غنچه سان نغښتی مکتوب کړه
په «شیدا» به احسان څه کاندی کوتره

په وصال کښې جدائی د دلبر گوره — دغره سرو نه نظر و کړه لمر گوره

په صدف دانزوا کښې صاف گوهر شته — په قطره کښې دخپل آب بحر و بر گوره

چه مالک هیچ د اسباب نه وی بې دلقه — دحباب په شان هغه قلندر گوره

که په خوان دي درست جهان خوري لکه مزکه — وهر چاته کوزله شرمه اکثر گوره

نه دخپل دولت په قید محبوس پروت یی — ورشتی و ته نظر کړه گوهر گوره

چه ریزش دمی ئی هیڅ نشته لمر بز دی — تغنن ئی لکه گل په ساغر گوره

د حباب په شان به زر ځنی خارج شي — که دي نه وی په خانه کښې بودر گوره

---

(۱) له رخشان نمره (ح)

مکړه غم د هیڅ مقسوم که هرڅو ګران وی — د صدف منقار دانه د ګوهر ګوره

د دښمن دفعه دخان حفظ په تیغ کړه
«شیدا» توره د هلال شوه سپر ګوره (۱)

خان دچا په طلب وژني بد اختره — چه روان ئی لکه اور تر خاکستره

دیوانه ئی په سابه کړه عالمونه — شه چه نه وینی هیڅوك پری پیکره

ستر ګی سپینی د هریك په انتظار شوی — ته به داو په کوم صدف کوی ګوهره

په هوائی ستر ګی توری د شاهین کړی — چه بازی کاپه تزویر دڅرخ کوتره

په تحریر ئی صرف دستر ګورو بندائی ده — چه مصرع ئی د آبرو شوه محرره

مشاطه که دي شانه په کمر کښېږدی — اعتراض ئی په خطا مکړه دلبره

هغه مخ ستا په یقین رخشان آفتاب و — چه حاضر ئي و دیدن ته شوي سحره

دمر دا نو په تیغ کله زنګ اثر کا — نکړه شام د هلال توره مکدره

چه دندان دمعنی بند دبل مضمون کا — حلاوت آخلی له قنده مکره

شین وم زه لکه سپند و خپل سوختن ته — چه په شاخ مي آرام نه وه بي مجمره

تش ګو ګل «شیدا» د تازه دی و بنګلی
خپله بخره زوره ورآخلی په غوره (۲)

استغنائي کم نګاه کوي نخجیره — ګرزوی لکه قزح قوس بی تیره

رقاصی په مشت خاك لکه ګرد باد کړي — که به مز که ئي عسرو رصاحب سریره

داخونریز په تیز نګاه کوي کافره — که د عند کتاردي راونه له کښیره (۳)

که بنګاره لکه شعاع دزخسار خط کا — په فلك به معطل کښېنی د بیره

(۱) داغزل د «پ» او «ح» په نسخو کی نشته .

(۲) داغزل د «پ» او «ح» په نسخو کي نشته .

(۳) له کښېږه (پ)

چه په ظرف کښې ئې خپل رنګ امانت بووه بې مثلې د ګل عاجز کړله تصویره
میسر به ده محشر په صبح نه شي فراغت د تورو زلفو له شبګیره
ګرداب و ګوره در باب حلقه بګوش کا هیڅ تحقیر د صغیر مه کوه کبیره

د «شیدا» رنګین اشعار د ګل خرمن دئ
په اصلاح ئې کړه تازه د هقان پیره

چه آرزوئې په خاطره وه د ګل ډېره په ګلدام کښې مې ناله کړه بلبل هېره
چه خبر له که مینا په تپش نه شي هر ګذار آخله په زړه له ځانه سپره
زمانه که مې آفتاب د بخت کوکب کا شپه به هله د فراق شي په ما تېره
د نظرو هل په شان د بینا ستر ګو په ژړا کا دی خندا دقهقه تېره
هغه دم لکه نمر ګل قبلې ته شا کړي که هندو لکه مشرق کا زر بر سپره
چه فانی په یوه داغ لکه شرر شي په سوخته عالم هغه سوخته ځان شمېره
تل د بل پاسبان د خپل صورت پاسبان وي حلقه و ګوره په در اتر ځان چاپېره

قلمی د زړه په لوح دا حروف کړه
بلندی ده د زېر «شیدا» له زېره

څه آرام کاندی حاصل په دا جهان زړه چه مدام ریبزدی له بیمه د آسمان زړه
په فراق درفته آب غافله خلقه توی کړ ما لکه ګرداب پخپل دامان زړه
هر ګز مه شه د دل بسته په دا باغ پوري چه آخر تري غنچه لاړه پریشان زړه
راشه و ګوره د درد ژړا یه وبنو دمینا په شان مې راوړ خونفشان زړه
په در باب نشوه رخنه د ګرداب رفع سیاست ته راوړه سخت لکه سندان زړه

بال و پر به ئې «شیدا» د طیران وشي
که ته صاف لکه بیضه کړې په آشیان زړه

ږمه دې وچوی تور د شپه ستا د سنبلو سنبلی (۱) مخ لکه سحر گل و نسرین کړه

کله ځان په میدان روغ وینې مغرور دا! د جولان په عزم پاخه آسمان زین کړه

چه گذر و کړې صبا د سرای (۲) په لوری آواره بلبل ئې یاد په گلزمین کړه

و جمال ته دې «شیدا» په ځیر ځیر گوری
حواله د خرام کار په ډېر تمکین کړه

په نرمۍ د هیڅ دښمن اعتبار مه کړه له دریاب سره بې چو به روز گار مه کړه

که دانه دې په ډېر آب نشوه سرسبزه شکایت لکه گوهر د بهار مه کړه

آخر نه وینې آرام د بسملانو د مرهم فکر فگاره زنهار مه کړه

لاس د ډېر لکه مرآت په خپل جوهر دی هیڅ منت د معاون و مدار (۳) مه کړه

خلاص به نشی سر کشان له گو شمالیه چه فلك په جهان شته دی تلوار مه کړه

ښکونت دې په اختیار نه دی تمثاله آرایش په آئینو د دیوار مه کړه

زر افشان لکه آفتاب شه بې مطلبه
«شیدا» سوال ته د سایل انتظار مه کړه

راته وایې چادې خونه نار په تار کړه د دنیا خونه مې ستا تر زلفو ځار کړه

په بیمار ستا د چشمانو ژوندون تر بخ شو د غمزې قاتل ته وو وایه تلوار کړه

سنگدلی و چه بې باره سروی نه کا څه خو رحم په فریاد د گرفتار کړه

ستا د ستر گو د کجل لکی آیت شوه تر افسون لاندی بچړی (۴) د سیه مار کړه

چه د زړه په مراد آه و کړم نشا ترسه په کشتن مې لکه شمع څه خووار کړه

---

(۱) کښېلی (پ) (۲) سرای د خوشحال خان ختك د کورنی تاتوبی دی . (۳) مدار (ح)

(۴) د مار بچی (پ)

زه دي وچوي تور شپه ستا د سنبلو | سنبلي (١) يخ لكه سحر گل و نسرين كړه
كله خان په ميدان روغ و ينې مغرور دا! | دجولان په عزم پاخه آسمان زين كړه
چه گذرو كړي صبا د سراى (٢) په اورى | آواره بلبل ئي ياد په گل زمين كړه

و جمال ته دي «شيدا» په خير خير گورى
حواله دخرام كار په ډير تمكين كړه

په نرمى د هيچ دښمن اعتبار مكړه | له درياب سره بې چو به روز گار مكړه
كه دانه دي په ډير آب نشوه سرسبزه | شكايت لكه گوهر د بهار مكړه
آخر نه وينې آرام د بسملانو | د مرهم فكر فگاره زنهار مكړه
لاس د ير لكه مرآت په خپل جوهر دى | هيڅ منت دمعاون ومدار (٣) مكړه
خلاص به نشى سر كشان له گو شماليه | چه فلك په جهان شته دى تلوار مكړه
كونت دي په اختيار نه دى تمثاله | آرايش په آئينو دديوار مكړه

زر افشان لكه آفتاب شه بې مطلبه
«شيدا» سوال ته دسايل انتظار مكړه

زاته وايې چادي خونه تار په تار كړه | د دنيا خونه مې ستا ترزلفو خوار كړه
په بيمار ستا د چشمانو ژوندون تر يخ شو | دغمزې قاتل ته وواپه تلوار كړه
سنگدلى وچه بې باره سروى نه كا | څه خورحم په فرياد د گرفتار كړه
ستا دستر گو دكجل لكى آيت شوه | تر افسون لاندى بچرى (٤) دسيه مار كړه
چه دزړه په مراد آه و كرم نشا ترسه | په كشتن مې لكه شمع څه خووار كړه

---

(١) كنبلي (پ) (٢) سراى دخوشحال خان ختك دكورنى تاتوبى دى . (٣) مدار (ح)
(٤) دمار بچى (پ)

که گردبادئې دغبارسیه دودنه شو ملامت دسوخته ګانو په مزار کړه

دعینما ګردن کشی افراط دعجز

و «شیدا» ته بلندی دلوی کهسار کړه

ددوران په لګدکوب کښې جبین وا کړه په همت کښې ځان همسرد نقش پا کړه

لکه زر که درفعت په کهسار باندې له خندا سره په سرو سترګو ژړا کړه

دعزلت په شبستان کښې قانع اوسه خپلې سترګې دې چراغ لکه عنقا کړه

که سایه دمات دیوار لرې تادانه! په خپل زعم کښې ئې سیوری (۱) دهما کړه

باردهرخس و خاشاك په خپل ګردن وړه حوصله دې په مثال دلوی دریا کړه

ځای دروغ دلېونی شه که هوښیار یې صلح کل دځان پېشه لکه صحرا کړه

همېشه دېل په کار کښې قدم سایه جاریده ترخپل همت لکه آسیا کړه

ترغرمې دې داقبال زوال لیده شی وعالم و ته زړه صاف لکه صبا کړه

نتیجه ئې روشنی ده پره ګرمی ده تل په شان دتنداره خشکه غذا کړه

په هرآن کښې بر یوتل دی لرزان اوسه تواضع په اوج دموج غوندې پیدا کړه

چه راحت درځخه سترې ستومان مومي خپل صورت دې لکه سیوری دهما کړه

چه دې مخ لکه دصبح صادق سپین وی په هر کار کښې له عالم سره رښتیا کړه

سایه وار متحمل دسنګ و خار شه چه په لار درفاقت درومې وفا کړه

چه اقوال ئې په خلاف داحوال وینم

اعتراض په خامه طبع د «شیدا» کړه

څه کرم باد لکه ندې ددې روزګار زه چه په خپلو او ښوو ینځم خپل پرهار زه

ابتلا دخپل خاطر کرم ستا په حسن په ګردش کښې مقید لکه پرکار زه

---

(۱) سیوره .

چه مې نه کاوه پرهېز د تا له مخه — تل بیمار کړم خلګو ستر ګو نرګس وار زه

اوس مې مینه یو په زر شوه باور وکړه — چه مین شوم ستا د زلفو په هر تار زه

په رخسار مې شي جاري لکه جوی اوښي — دوا ړه لب چه کشاده کړم په ګفتار زه

را ته هیڅ زیبا تمثال د آئینه شي — ستا صورت چه چیرته وینم په دیوار زه

څه پوښتنه کړې له ما څما د وضع — لکه ګل ګوم خندا په سر د دار زه

چه له ښاخ سره وفا کا په سره اور کښې — لا تر ګل نه یم مین د ګل په خار زه

په نصیب مې وی ذلت د پای مالی — چه له باده پاته وو ینم غبار زه

دصبا په شان مې ژړه چیرته پری نوزی
چه ګذر کوم «شیدا» په هر ګلزار زه

څه رنګ بیم نکړم د موجه د قلزم زه — یا ښغمه شم د مینې په دم زه

له هیبته ئې سمك دست و پا ګم کړي — ژړه یم د هغه مینه د تلا طم زه

د وحشي په شان به دم ور ځنی وکړم — ښه چه نه وینم دستر ګو مردم زه

په پرده کښې عجب رازوا یی وماته — چه ه... م کړم در باب زیرو بم زه(۱)

یکښې نهؤ رنګ د هیڅ ګرم جوشی — ن چه راغلم د شرابو په خم زه

ګریه وکړم په احوال دخسته زړونو — که په وضع دروز ګار تبسم زه

درسته شپه ئی پاسبانی لکه آسمان کړم — جواهر کړم د صبا په وقت ګم زه

که خزان مې د ګلبن په شان لرزان کا
«شیدا» نه کوم آرزو دقاقم (۲) زه

ای په مهر د آسمان په شان خونریزه! — مشه نوره ستا د کین په فتنه تیزه

(۱) دا بیت د (پ) له نسخې څخه رانقل شو .

(۲) یو حیوان دی چه سپینه څرمن او ښاسته ویښتان لري او پوستینونه ورڅخه جوړېږی (برهان)

کــه ښکاره کــاشپړيني دسرو لبانو     شور بهورك شي هغه دم له رستا خميزه
گريبان ولي پاره گـــل دسحر کــړ     کـــه ناله دبلبل نه ده دردانگيزه

«شيدا» نشته پکښې بوي ديك رنگيه
زمانــه لکه بهار ده رنـــگ آميــزه

دحيا بهره دې نشته ديده وازه     لــکه شمع دفلك بــې بــې گنبدا زه
لــکه زلفې دسنبل لــه شانه کشه     داجمعي دپرېشان له دست اندازه
شهبازان ودې به منـگول خط دکبکا و     ستا پاسعي څه موقوف کــبوتر بازه
که مې زړه وور ځني چاود لکه آسيادې     خلاص ئې نه يم دخدمت له تنگ وتازه
و کرم ته دا بازهنر شرط نه دي     اى ترو ضع دمحمو د بــنده نــوازه
ولې نه لرى سايه دآفتاب جسم ؟     نوى خط په رخسار و گوره طنازه (١)
ورك په شان کرم دمهتاب سيه روزيه     آئينه مې زنـــگ آ خلي له پر دازه
احتياج ئې داسباب په تعين دى(٢)     چه حباب په درياب نه ځي بې شنازه

درنهايه شب روى دشمــع سرځـــى
«شيدا» مه آخله پرده له خفيه رازه

لاس ترسل ځله په سر کړې بيايا کسه     لهخوانونوشې شانه پهخوىمکسه !
نوردې عزم پهفرق دکهکشان دى (٣)     چهدې راشى و آ خورته څوفر سه
آچوې پهاضطراب کښې کوراو کلي     دشر رگـرم صحبت لهمشت خسه
شپهاوورځ په رعايت دخپل صورت بې     مشتغل پهخاکبازۍ شوې بوا لهوسه

(١) ناز کوونــکي ـ شوخ (غياث)
(٢) تعين دى واسباب تهمحتاج کړى (پ)
(٣) اوس دې عزم پهفرق دکهــکشان دى (ح)

کەفریاد لکەسپند پەدامجمر کرم　ما و نەلید ا لتفات لە فریا درسە

چە عالم د تاوون پە هر دم و یښي　حیرا نسی د آئینې شوە هم نفسە

هیڅ عجب نە دی «شیدا» کە دام د طمع (۱)

عنقا او لی د باز و ترچگسە (۲)

راغی بیاپە قصد د گلو گلفروشە　چە هیڅ مرغ د چمن نە دی بې خروشە

هر جرس ئې دی حباب د همو ار بحر　قافلە پە دا صحراد رومی خموشە

پەطلب کښې ئې شور نسک دځان پە ویښو　لائې نە رسی یاقوت تر بناگوشە

گە ا فتان لکە پر وین گهې خیزانځي　ستالە بزمە روانشوی خومدهوشە

مالباس ورپسې رنگ د گل پەشان کړ　لکە بوی هسی مې ووت لە آغوشە

راشە گورە د کبا کل سیەمستی　بوقدم پە لارە تلی نەشی بې دوشە

داسیاب غوندی پەزړە د گرداب و چوی

زمانە شوە د «شیدا» هسی سر د هوشە

چەتصویر پەحریر ساز دشوخ وشنگشە　لکە برق هسی روان پەهوار نگشە

د گرداب پەشان مې تر آسمین بە اوښو　کلەخشك پە تمام عمر کښې بودرنگشە

کشادە شو هسې کام د حریفانو　چەلقمە ئې دمحیطپەشان نهنگشە

لەچامە غوا لدیء قران تهی د ستا او　پەبدن دحباب کوم پیرهن تنگشە

هسی شان یم مکدر لە دې دو راە　چەتمثال مې پەصفاد مرأت رنگشە

---

(۱) داغزل د(پ) پە نسخە کې نشتە

(۲) دباز یا باښې تاتوب ځای (سراج اللغات)

سپر وارزه شو دخان سپر که سل ئې سپره نشانه چه لکه گل دخپل خدنګ شه

په طلب «شیدا» دکرم صحبت اوسه
صاحبدل ئې به تاثیر د حلب رنګ شه (١)

چه گلدام د هغه زلفو عالم گیر شه هر صبا لکه گرد باد په کښې اسیر شه

ماچه خرله لکه غنچه په پستان کېښوه جوش دو ینو مهیا په ځای دشیر شه

چه نکهت ئې د کاکل راغی و باد ته نن غبار ردي صحر امشك وعبیر شه

درست کباب په سره لمبه نم ئې شبنم دی ستایه قله تمام گلشن هسې زهیر شه

د حیات امید به څه کوي نخچیر ه چه هر بال دي په صورت کښې پر دتیر شه

«شیدا» مکره طنطنه د شاعری

که بلبل دي په چمن کښې همصفیر شه

زړه مې هسې تر لېمه په دامن توی شه چه هر موج ئې په صحرا کښې ممن توی شه

په تمکین کوی خرام زما شیر بنده چه له شرمه بېستون د کوهکن جوی شه (٢)

استقبال ته ئې راغلی نو بهار دی خراماں و باغ وراغ نه سمن روی شه

آفت نه کوی غرض په پریشانو وایه چیرته برق د گلو خرمن خوی شه

چه لباس دي آلوده په عرق راغلي په شبنم د چمن گل پیرهن شوی شه

شمع څه لری به زړه بیدرده خلقه چه په بزم کښې ئې تل گریستن خوی شه

دسومن ژبه حیرت کړه سرمه سایه
چه «شیدا» په دا بهار کښې سخن گوی شه

لکه شمع په ما اور شیرین صورت شه مګدر مې له خپل سر سره صحبت شه

دسپهر په خاطر کښې مهر وینم نیره گی د خپل اختر په ما آفت شه

---

(١) سنګ شه (اس) (٢) څوی شه (ح) .

په هجوم کښې ئې د اجمع پروین وار وی        انجمن چه په هر چا باندی خلوت شه
سزاوار دی لکه ښاخ د بلندۍ        چه عطائي د ثمر خوی و عادت شه
آواره یم لکه ثمر په هسی د ښته        چه د شوار مې وسایې ته رفاقت شه
د کمان ګوښه په وایه ګوهر څه کا        آرایش کله لازم د خم قامت شه

«شیدا» نه رسی هغه و هیڅ معنی ته
چه محبوس (۱) لکه صورت د خپل زینت شه

ستا په مخ باندې ښکاره خط سیاه شه        که غبار دی مګر سور د نیمروز شاه شه
کله می تل د زړه خرمن سوځی معذور یې        چه لازم ؤ لکه برق ګرم نګاه شه
بسته کار دی مصلحت د تنګ ظرفانو        د حباب په کشایش کښې حال تباه شه
په سوختن ئې زړه د کوم پروانه وسه (۲)        چه رنګین ئې لکه شمع سوزان آه شه
ستا کیسه ده غنچه وار په زر لبریزه        تر آستین دې لاس په داد ولی کوتاه شه
په ریا می کړ ښکاره د خاص و عام ته        د غره سر می لکه مهر سجده ګاه شه

چه باران ئې همېشه د ژړا و وری
دا کثیر (۳) په «شیدا» ګوره تیرا شه

کله وایه باد د تا د مخ نقاب شه        سرې لمبې ئې کړې تازه جهان خراب شه
ادیده شهادت لم (۴) خه خون ئې و کړ        په رنګین دامن ښکاره لکه آفتاب شه
بیخبر ئې نو بهار د حسنا بولې        ستا په لاس کښې تازه ګل له شرمه آب شه
انهدام ئې د سیلاب په صدمه نه شي        هغه کور چه درست خالي لکه حباب شه

---

(۱) چه مجنون (ح)
(۲) وسو (ح)
(۳) دغه ی نوم دی .
(۴) د «لل» له مصدر څخه .

چه ذائقه دچاعیده شوه دچاسبزه گردنده فلك آسیا شه هم لادوب شه

ستا دماغ ئې التفات نه کا و نوی ته

څه بېځایه د «شیدا» خاطر کباب شه

ستا د مخ له شرمه هسې چمن آب شه چه صورت دغنچې درست گوره حباب شه

راغلي ته په دا میدان قمرطلعته ! چه غبار دی دمیدان (۱) شب مهتاب شه

د آسمان په شان ئې کښت مه شه سرسبزه چه ئې عمر تېر په دور د دولاب شه

په دولت کښې راحت نشته ورشته گوره په گوهر کښې ئې ورك کله پېچ و تاب شه

گلچیني ئې د بهار نه ده آسانه هر گلچین ئې د گلگیر په شان کباب شه

و تحریب ته ئې سېلاب هسې مایل دی چه زمانه کاشانه راغی گرداب شه

زرد روئي ئې د عطا په استرداد شي هر سرې چه زرافشان لکه آفتاب شه

په یقین به د «شیدا» تمام نیمروز شي

که له مخه ئې په شام لرې نقاب شه

نو بهار له باغ و راغ سره آشنا شه په سرو ستر گوئې ژړل ځني جدا شه

دغنچې در باط ور په وا کېده دی قافله د رنگ و بو درومی صبا شه

دسوخته جهان لوخړی فلك بولي ستا خطا فکر ته څه وایم خطا شه

آبادی ئې مستلزم مه دز ندان وی هر خاطر چه آزاده لکه صحرا شه

چه تر اوسه دی حیران په جهان پاتې د مجنون اسم زما په تماشا شه

چه په تله ئې خبر نشوې، په افکار هم ستا له صافه شسته تیر هسې رها شه

آبادی ئې بیا مه جا له ده ناداننه

د «شیدا» د خاطر لرې بنبهر تالا شه

---

(۱) دجولان (ح)

اې څمــا تنها خاطره! کــم فراغــه ! ｜ چاصحبت درسره گــرم کــړ بېداغه

گــل مې هسی په قــفس دغنچې بندشو ｜ چه ئې رنــګ چېری پرواز نه کــاله باغه

په مستۍ (۱) کښې ئې بهار دی جنون ایښی ｜ راکــړه مانه ښاخ د ګــلو څوابــاغه

درکــښې نشته د چراغ ګــرم روئی ｜ پروانه دې څــکــه ورك دی شبچراغه

تــواضع د بــلنــدۍ پــایــه داری ده ｜ لــکه سرد کــوه قــاف شه بېدمــاغه

تل په هېڅ وی سیه مست سفله و کړی ｜ جــام جم کــله راغــلی دی تــر زاغه

چه ئې ستر ګې دی په کــنج د زندان سپړ دې

د «شیــدا» وحشــت خــبر نــشــولــه راغــه

هر بوزده پــه اور دهجر لــه دی بــاغه ｜ لــکه هېڅ یو لاله لاړ نه دی بې‌ــداغه

جستجو مه کــړه هر ګــز د آواره وو ｜ لــکه رنــګ د ګــلو دروی بې سراغه

برطرف مې تــکلف ده پــر اسباب کړ ｜ ما شیشه لــکه غنچه کړه بې ایــاغه

دمسك دولت په کــار د محتاج نــه شو ｜ شمــع نــه کــا اقتباس لــه شبچراغه

قطره آب دې حقیقت دی خبر نه ئی ｜ سراپــا لــکه ګــوهــر هسې دمــاغه

دلاله غوندی ئی داغ دخاطر په څــی

هېڅ خوشنود نشو «شیدا» له باغ و راغه

تــاچه لاس کــښېنو خوبا په ملا باریکه ｜ په پنجه کښې د آفتاب پیداشوه لیکه

په چشمه د آفتاب آب واخیست ستا تور ｜ چه مې او بېزی لــکه برق له زخم سر یکه

په شمشېر د قاتــل آب وینم دو یــښو ｜ که ښکاره ئې په آبرو شوې دسر و ټیکه

په دیده ددور بیــن و ګــوره دنیــاته ｜ چه مې شی لیری فنــا درتــه نزدیکه

کړه رهــا په دا دریــاب کــفن دغاړی ｜ دحباب په شان روان شه بې تملیکه

(۱) په باده کښې ئی (ح)

ماته‌یې ئې مشاطه په رنګاورنګې — دې ئې خونه دګا ګل تر شپې تاریکه

«شیدا» نه‌کېږی نجات له اضطرابه
ددې دست همېشه نه‌وی‌یې تحریکه (۱)

اعتماد نشته په کار دآسمان ځکه — چه‌له دی‌اوج ئې نمرو یشته په‌مزکه

وهلال ته ئې ور کړی په‌لاس لوردی — ددرو کارونه غوا‌ړی له نازکه

ددنیا آرایش هیڅ دی‌ودانا ته — په‌خپل‌حسن ه نادان غولوی لینزکه

ته‌به‌خه‌یه‌دا‌میدان‌چو ګیان‌بازی کړی — عراقی په نیستان نشته هلکه

دسحر دولت کامل بدرحاصل کړ — لکه‌میاشت دپل نقصان له‌لاسه‌ورکه

دذری په‌احوال‌تل دنمر نظر وی — اوی‌به نه ګوری واړه په‌ستر ګه سپکه

که دې‌جام لکه حباب و نه نیوسیند ته
آفرین دې په همت «شیدا» خته‌که

په تازه‌پ لکه غنچه کاشوخ وشنګه — دیاقوت تکمه جامه زمرد رنګه

په بخیه‌ئې‌ده‌پر ګمان درګ ګل شی — په بدن‌دې چسپېده خوشنما تنګه

چه دبل ولاس ته ګوری دانه‌غواړي — دقفس‌مرغی خونه بې آسیا سنګه

مبتلا په عجب دردوی تر سحره — تاچه نکړه ستر ګه‌بته شب‌آهنګه

خونریزی ده تل عادت دخوبرویانو — شست خالی‌دتیر مانه‌وی‌له‌خدنګه

په لیده داور پرواز کاله سروره — دخپل‌ځان دښمن به‌څوک‌وی‌بې پتنګه

خپل میدان ئې کف دست کړ «شیدا» ګوره
دحسنا عالم پري قتل شه بې جنګه

معذرت داضطراب لري بسمله ! — جدائی ده دآشنا صورت مشکله

راته‌و ګوره‌در یاب‌دکوم عالم یم؟ — لکه آب د ګهردرومم بې ساحله

(۱) داغزل د«پ» او «ح» په نسخوکی نشته یوازی‌د«اس» نسخې ضبط کړی ده

نو بهار په هر چمن سره خولی کړ غنچه زاره ي کړ دسیالی له سنګ دله
په خرمن می نسلی دم ورو نشوه برق روان دی هغه لورته بي حاصله
څوك چه صافه خپله لار کا باورو کړه دزورق په شان ئي لارودی ترمنزله
څه تدبیر لکه سحاب دراحت و کړم چه شعله خیژی زما له آب و ګله
دجسد په ناقه تنګ د ګران لحان وی لکه رنګ د ګلوورك دی بی محمله

چه صفائی شیدا ورك درنګ جوهر کا
آئینه د خپل نفس کړه مقا بلة

همسری به زما څه کوی بلبله ! مازده کړیدی پرواز له رنګ ګله
په پنجه ئي د آفتاب آشفته شوی کشانه دی تار په تار لری کا کله!
روشنی دسیه بخت په تشویش نه شی پریشانی دخاطر لری کړه سنبله !
بي تابی لکه ذره کا ندی په تاب کښی چه خبر دی دایوان له تزلزله
اتفاق ذجمع بوله دشوار کار ته چا قرار په در یاب کړیدی بی پله

منتظر ستا د ګفتار دی « شیدا » بزم
چه ببل امر میغا نه کا بي قلقله

روشنی دخپل مرآت کړه دآفتاب پشان کاءله

په نفس د صبح نشوه ورته و ګوره زایله

د ګیلو آواز می نه ؤ نه دی تیغ په مار نګین شه

زه ماهی غو ندی بسمل شوم ته بدنام شوی قاتله!

په صدمه به ئي دسیل بو قدم بیځا په نه شی

دنبات طور چه زده کړ همت نا کو له ساحله

ماسایه د باغ بدله په سایه دمات دیوار کړه

خپل همت د نار وزی شه د رومه ابر دریادله

هیڅ د خپلو آبلو ته روان آب غوندې مه گوره

ننپی کړه سپکی په دالاره گوندی ورشی ترمنزله

ننه اتـکل دی «شیدا» وکړه نشته ځای دفـر باد چاته

اکه شمع پـټه خوله ځـه په ژړا لـه دی محفله

چه ئې نه کـا پروانه د دیدن جله (۱) — د فلـك شمـع ونـه ژړل پـو ځـاله

محبت لـه محبت سره موندشـی — دانکتـه ده په عـالم کښې مدالـه

د نرگس په ادا چادی زړه بـا یللی — دلبری په ستر گونشی بـې کـجله

همسری ځما د سوز هغه لالـه کـا — چـه شعله ئی وی دداغ پـه پنبه بله

څه اثر دی آه سرد د بلبل کړی — چه بو گـل د چمن نه دی بـې منـقله

تحمل د آب وخاك په زحمت بـو یه — ترهغه چه نه ئې خلاص لـه دی دلـدله

دلا له پشان ئی تـل جبین داغلی — چه تیـاره د کور نه ځی له مشعله (۲)

طهارت به په کوم آب «شیدا» رواشی

د آفتاب چشمه روز گـار کـړه مستعمله

چه سر بازئی په رخسار شوې دم د رحاله — آور بـن دې په همت عنـبرین خـاله

ستـاو ناز ته نگران تمام جهـان شه — اشارت په ابرونه کوی هـلا له !

وآرام ته می آغوش د گـلندام بویه — هسی ستړی یم لـه خـپله پرو بـاله

زه کړم یاد د هند سبز نانو شوخی سترگی — ته چه رم په سبزه زار کوې غزاله !

---

(۱) ځاله (پ)

(۲) دا بیت یوازی د (ح) په نسخه کی شته ؛

چه همپش لکه مجنون په صحرا گرزې — بوی دچاد زلفو درغی شماله!

دقاتل د تیغ ددم خاطر نازك دی — اضطراب د تپیدن مکړه حلاله !

اسیری می ده مدام په شان دژبی — څوك دي نه وینی څما دنشتو جاله(١)

په سبب ئی دگردش خبر دار نشوم — دآسمان پیاله خونه ده مالا ماله

نه خلاصیږی پر گویان له گوشمالیه — را معلوم شول در باب له قیل و قاله

په پر هار د کهکشان نمکپاشی کا

له آسمانه به «شیدا» غوادی دماله ؟

چه توسن دفلك گرزی بی لگامه — شهسوار به ئې څه حظ واخلی له کامه

گمنامی عجب مرهم دعا فیت دی — رنگین غوندی زخمی گرزم له نامه

که تمکین دمجوز دشوخی نشته (٢) — دلبری کړ لکه سرو بې خرامه

ته به وائې چه غنچه په نمو راغله — پس له خوا به چه غځیږی(٣) گل اندامه

تماشا کوی د کوی گلگون لباسه — که راغلی دی آفتاب تر لب بامه

وخنجر دې مگر آب دوینوور کړ — لکه برق چه رنگین څیږی له نیامه

تر خندادی همیشه گلاب(١) ناخیزدی — چه واقع شی له چا فعل بې هنگامه

همیشه به ئې بهار په باغ وراغ وی — که رنگین شعر می یوسی تر بگرامه

څپل حیات به شیدا صرف ستاپه طلب کا

که ئی ته راشې په لاس تیره ایامه !

کاشانه ددې دنیا و گوره درومه — آشیانه لکه عنقا و گوره درومه

کهن سال لکه اطفال کوی بازیء — داعجبه تماشا و گوره درومه

---

(١) څوك دی نه وینی څماد نشتو حاله (ح)

(٢) دشوخی نشه (پ) (٣) غرېږی (ح)

(١) کلام (پ)

کەمې نمر پە تندی ودری همسایە ! پە دا حال مې استغناو گورەدرومە
سمك نەلری بهرە لە دست و پایە پە دریاب کښې ئې شناو گورە درومە
پە محفل کښې دمینا پەوە گرید پە داڅ کە خولە خندا و گورەدرومە

دم دمهر هرە ورځ و هی « شیدا » تە
د فلك مهرو وفا و گورە درو مە

تیغ پە لاس رنگین دامن راغلی لە کومە پە ښېوە دخونریزی لکە نمر سلومە (١)
یو تر بل ناهل عشق دلنشینی هویدا دی د نگین لە نقشو مومە

چە پنبە دزړە پە داغ کېږدم سوختە شی
د علاج فکر مې څە کوی ور درومە

بیائی کېښو (٢) سرمەسنگ پە آستانە کښې هېڅ طاقت دفریاد نە لری مظلومە
ستا څېرە د قرص پە غم وە مدام زردە دآفتاب غونی غافل ئې لە مقسومە

قناعت ئی دانە راوړه و منقار تە
« شیدا » څە کوی آسیا دگندم لومە

غلغلە شوە ستا دخط د لربا کمە (٣) عاقبت دتوری شپې شی غوغا کمە
پە دانە بەخرمن کار د آسیاو کا دتمکین وضع شوەاوس دهرچا کمە
ما بە نە کړە لکە صبح سر د آهو نە کە د گل پەشان دې نە رای وفا کمە
همسری د آسمان مە کوئ مې کښو! پە بل بزم کښې هرد موی مینا کمە
دآفتاب پنجە حمرت پە نورمغلوب کا چە شوخی مې شی پە لاس دحنا کمە

---

(١) دا کلمە حل غوا ړی .
(٢) بیائې کېښېښ (پ)
(٣) غلغلە دی شوە دخط دلبر باکمە (ح)

بیما ران ئې د چشما نو دواخه کـا چه موندہ شي له دې ر اڅه شفا کمه

کـه ئې و ایـد شیدا غـم د جدائی
پهٔ پر نول کښې، بهٔشی لویه بلا کمه (۱)

بېدا ری به مې د بخت شي مسلمـه دفلك فتنه کـه خو اب یوسی عالمه

د آسمان تلې کـه ډ کې پهٔدانو دی ځنې نه کـا خریدارد دانې طمعهٔ

دمیزان په شان مې علم پهٔ پاسنګ دی هیڅ خبر نه یم لـه خپله بیش و کمه

دحبـاب خـالی کـاسه گوره لبر یزه کړه کرم پهٔ تهی دست صاحب کرمه

قطرات ئې د عرق طرفه نقاط دی شکـلی خط ئې عجب زیب کـا بې قلمه

کهٔوی خشك د دریاب لب له تشنګی
«شیدا» کله بهٔ طلب کا جام له جمه (۲)

روغ بهٔ نهٔ شم بې وصاله راشه کښېنه شهٔ خبر ځمـاله حاله راشه کښېنه

آخر کـړ یدی قرار رم سر شتـانو دوحشت پهٔ خوی غزاله راشه کښېنه

پهٔ مرادد عند لـیب بې و فا گـله جلوه گر شوي پس له کاله راشه کښېنه

زه آرام لـکه بسمل پهٔ پر هار مومم له تا نه غوادم د سماله راشه کښېنه

تل بهٔ داخمو ابرو، (۳) پهٔ شهلاستر گو دخپل یار شام و هلاله راشه کښېنه

چه ایـام کـړو سره یـادد بېغمی یوساعت ځمـا همساله راشه کښېنه

نـاز کی دیـار د طبع کـړه منظو مه
ای شیدا نـازك خیـاله راشه کښېنه

هـاچه وژنې اوس دمینی پهٔ تور ځانه زهٔ دې ولی لهٔما آخیست پهٔزور ځانه

---

(۱) (۲) داغزلی د « پ » پهٔ نسخه کی نشته .

(۳) تل پهٔ دازیبا ابرو (اس)

ناامید لکه حباب یم له سروره — چه می جام شو تمام عمر نسکور ځانه
آواره می ستا په مینه نام و ننګ کړ — را کوي دبي ننګی ئي ېېغور ځانه
بي له جورو له جفا بي له ستمه — پروانه به نورځه یاد کا داور ځانه

تل به تا «شیدا» دمرګ په خواب کښي وینی
که ئي سر په بستر کېښو د ګور ځانه

په را تله د نوی خط ناسته حزینه — سادګی دي شوه په دا نقش رنګینه
که دهند آب ورنګ صرف ستا په صورت شو — خپل قلم ورته ماني راوړه له چینه
لکه شمع په محفل دسنګ د لانو — ځما او بنی طمع نه کا له آستینه
کف پای دي حنائی دچامشهد کړ — ترقدم لاندی هم وګوره خودبینه
په فریاد دبیستون سنګین خاطر شی — چه نعره کاد فرهاد په غم شرینه
دهمت علوئي سرله تادر بغ نه کړ — چه دشمع په بهار راغلي ګلچینه
صبح وشام دي ملا ترلي په خونریزده — تاد مهر په شان هیڅ نزده بي کینه

«شیدا» هسي کړه ګر یز له اشتهاره
چه دي نام چیري و رنشی تر نګینه

ستا په سر سوخته بورا ګرزی چمنه — که هسك شوی توراو ګی دی له ګلخنه؟
په ګل بلی سري لنبي دصبا باد کړي — شني ده وزی ئي ختي له پېرهنه
په کفن کښي به خندان لکه غنچه شم — که صبا غو ندی می را شي تر مدفنه
ګرمی هسی کاندی آب دتاله عکسه — چه ماهی په کښي کباب شو بي روغنه (۱)
تورلیمه لکه قلم کیږدم په لاری — چه ورځم د هغه بنکلی تر مسکنه
شپږ بن کام نشوی دیار په خوږ ولبو — په نصیب دي کوه کنی راغله کوه کنه

---

(۱)

دطینت خشکی صحبت کا بې گرمیه دانکته سنگ و آتش کرمبرهنه
په اداي در موز کله څوك پوه شو وایی بنه دسوسن ژ به ترسوسنه (١)
چه محنت دسیه دل په تربیت کړی دزانو آئینه نکړه چار و بنه

چه شهید لکه خور شید په خپل تیغ شو
اوس تجهیز د « شیدا » بو یه بې کفنه

ماسکه ته ستا بلند قد ته گلبند نه ددستار په ځای می سر پر یووت له تنه
راغلې بیا یه څه ادارشك چمنه چه دسته درو می د گلو له گلشنه
د تجهیز فکر به څوك دواسوخته کا شعله نه اری صورت بس له هر دنه
چه زاوری ئې داهسی مشکین خط دی درخسار قاصدئې راغی له ختنه
نقصان اری کړد کارسبك روحانو دحباب گریوان پاره وی تر دامنه
چه اهزانهی کتوری غواړی وکړی اثر نشته دجمشید له انجمنه
که له حاله ئې غافل ابر بهار دی صبح کله دعاری له دمیدنه
په ارزه دی جلب کړ له بید لیه دتندی ئې پهخارا خاطر شکنه
لکه شمع دفلك گلگونی او بنی کاهیده نه شو بیدر دله گر یستنه

انتظار ستاد گفتار سخن فهمان کا
خاموش مه اوسه « شیدا » شیرین سخنه

هر گز نه وینی په ستر گو مر همونه دقیمی به دودمې زخم خوری زخمونه
خبر کله لکه بید په بار و بر یم خو دمی کښلی په جبین دی قلمونه
لکه حرف چه سیه پوش وی په بیاض کښې په بنا دی کښې ماتمیان کاماتمونه

---

(١) دا بیتونه (پ) او (ح) په نسخو کی نشته .

چه د نقش په شان هسك له خاوره نكړم    په زاړه دهر چا نيسم قدمونه
كه سكه وهي «شيدا» تعجب مه كړه
عاقلان د زر ګل په در همونه

چه خيمه دي د ليلا نشته مجنونه    نور به څه غواړي له دي دښت وهامونه
شوم طالع يم د فلك به دا محفل كښي    پياله مې ده په لاس كښي تلوا ژونه
كه پوښتنه د فرهاد كوي شيرينې !    د فرياد عالم راځي له بيستونه
چه سبزه ئي د سحاب ممنونه نشوه    د همت سيالي ئي څوك كا بي ګردونه
اوس ئي څه ووزي د بل په خرابيه    دوا رو زلفو ئي خوره كړه خپله خونه
توري زلفي دي آفت دوا ړه رخسار هم    هيڅ تعبير ئي به چا نسي بي شبخونه
په خزان كښي به سرور و كړي بلبله    كه په ستر ګو دي مژګان شي ګل ميخونه
درد سر د ولايت مه كړ زهير كړي    چه قانع په مشت خاك شوي فريدونه
چه تسخير د پريزاد كا په خبر و
د «شيدا» فكر كم نه دی تر افسونه

چه جرس ئي خالي نه شو له افغانه    قافله ده په دا دښته سرګردانه
په خيره نظر جلوه د حسن څه كا    آئينه ودی عالم ته ده حيرانه
اختلاط ئي په وحشت د ستر ګو نشي    د هو سيور مه رم كا له شمپانه
مګر وژاړه فرهاد سيل د زر كو    چه په سروستر ګو راځي له كوهستانه
د صبا په شان ئي طرز د خرام وينم    بيا په عزم د خونريز ده خراماننه
چه مشغول په تماشا د نو بهار شوم    هيڅ حاصل مې په كښي نه و بي ارمانه
په هر شاخ ئي د ګلبن وي بوڅو چيغي    دريده وو په ماتم كښي څو ګريوانه
لكه موج په هر دم زير و زبر دی    دو فاطمع به څه كړی له جهانه
په هر لور لكه حباب خانه بدوش ځي
كه «شيدا» شو آواره له خان ومانه

داشفاق طمع بهٔخه کړې لهٔ خوانه نتیجه ئې و ر کېده دی له کنعا نه

آخر وژا ړی پـه شام دغـر یبا نو که هر څو دو طن صبح ده خندا نه

زمانه پهٔ رعا یت دګـا وو خر ده پر و ر ش دعلف زار بو یه باغبا نه

دکورې نیل دې پورې پهٔ دیده کړه بصا ر ت د تمـیز نـلري آ سمـا نـه

دغبار تدبیر دې څه پهٔخاطر ګرزی اې د ناز پهٔ مقتضی دا من ا فشا نـه

هغه دم شـی نیشکر لـه شیرینئ تهٔچه لب کښیږدې پهٔنی زما جانانه

پهٔلیمه کښې ئې دخس پشان غرېږه تا بـه سبز کـا سپـهر کهـکشـا نـه

خستهٔزړه ئې غور څوی پهٔتورو خاورو

ای پرغم د «شیدا» کـا کـل افشانه

کهٔخبر شی هغه مست خونخوار لهٔځانه لاس بهٔپرې وینځی تمام دیار لهٔځانه

چهٔئې ګـل دسبا باد کـا پهٔ خنداشی لکهٔشمع د غنچې بیزار لـه ځـا نـه

منزوی دخاص وعام پهٔاز دحام کښې لکه بحر کـا پیدا کـنا ر له ځا نه

ترقیا مته ئې خلل د تمکین نـه و ی چه حاصل کـا لـکه غرقرار لهٔځانه

ای ترسنګ درعنا یت پهٔعشق کښې کمه جلوه ګر د ې و لی نکړ یار لهٔځانه

«شیدا» هسې پهٔزړه سوړشی لهٔدوستانو

لکه موږ شی خسته تر بیما ر له ځا نه

پهٔ سو به دی د دو ران انقلا بو نه پهٔسر چوب د ملاح وخوری دریابو نه

پهٔغفلت دې عمر تېر کړ صدافسوس دی شپه اوورځ لکهٔمخمل کوې خوابو نه

دتلوار پهٔبال پرواز لکه بلبل کړه ګـاه ګهې لـکه ګـل وا کـا نقابو نه

ابلقی ز ما دستو گو پکښې گرزی    ډېری او ښکی می په مثل تالا بونه
په مستی کښې ئې چشمان لکه اخګروی    پرې بریان ذخوزو زړونو کبابونه
ستا دخط دیوه حرف صفت تم نشو    په دا باب می قلمی کړل کتابونه
همیشه وی دمسك قبض په بسط کښې
په دریاب کښې «شیدا» گوره گردابونه

چه لری لکه آفتاب رخشان مخونه    دشفق په شان می بل کا اور په خونه
په هنر دگوهر آب له بحره ووری (۱)    تش ځولان کا په میدان دسیل ورخونه
آب ئې هسې بران تیغ په افراطواخیست    چه گردش ئې دآسیا په شان څرخونه
دطالع اثر می بیا گل وخاریو کړ    چه دستا زما دباغ شول گل میخونه
د آتش لمبه کا باد گویا بلند دی    چه حباب مې شی پیداله گرم خونه
دجبین تر شو ئې نخښه دخامی ده    چه کباب وخوری پرزړه تیره سیخونه
تر دگل قرار نه کا بی یاره
دبیا په دود «شیدا» دتا اوخونه

بیدلان په خاطر ریش کا فریادونه    بلبلان د چمن پیش کا فریادونه
سینه هسې لکه نی لرم پردرده    چه نفس پکښې همیش کا فریادونه
چه خبر له درد نه دی انسان نه دی    وایه څرته گاو ومیش کا فریادونه
په نعمت به دمظلوم زبان بسته کړی    عسل خور کله په نیش کا فریادونه
ددښمن ئې له خاطره خوبان په دوست جفا کا
«شیدا» تل ئې خیراندیشی کا فریادونه

---

(۱) ووزی (پ)

لوی راحت دی ستا دجور گزندونه  الکه نیش هسی دنوش لری خوندونه

ځما زړه ئې کله را نیو ستاله زلفو  که هرخوئې شانې تاو کړل مړوندونه

دآسمان گردن ئې خم کړ انسان څه کړی  په دا کښې لری هسی کمندونه

دصورت له دامه خلاص سپکروحان وی  نه وی بند دزر کوسیلی په بندونه

دراستی په سپینه لار سنگ وخار نشته  په لیمه لکه حباب گوم پندونه

تعلق نه کا اثر په صافو زړونو  سره لیری دی شیشه و پیوندونه

چه پیدا کا ندی «شیدا» راستی دژبی
څوک تر ي اخلی لکه سرو سو گندونه

په انځور ئې بلبل وکړل چغارونه  کښېده ئې تازه گل ستنې خارونه

په رخسار ئې عرق وینم توری زلفی  که د گل په شبنم میل کامارونه(۱)

وچشمانو ته ئې خم دواړه ابرو دی  صیادان د غزالانو کا ښکارونه

پس له شامه گوره رنگ دشعله رویو  په شپه گرم وی د شمع بازارونه

دهغه دسر کلاه کله پسر یوزی  چه ئې ترک لکه آسمان کړل دستارونه

چه ئې و لگی نظر دتا په حسن  دتالاب په شان به بند شی آبشارونه

چه روزی ئې استغنا په شان دآب شی  بې مرهمه ئې رغیږی پرهارونه

په یوه قدم عصا ځی تر تا دوړاندی  مستعدیه لبز اسباب کادیر کارونه(۲)

چه «شیدا» د طبع ښه بلبل گویا دی
راشه نن د خیالات په گلزارونه

بیارنگین کړل گلرخانو میزرونه  که جلوه کا په چمن طاؤس پرونه

---

(۱) دا بیت د (پ) په نسخه کې نشته .

(۲) دابیت د (پ) په نسخه کې نشته .

نه‌دې یو گردش دچشم نه‌سل ځرخه    چه‌پر تېز کړې دمژ گانو خنجرونه
چه‌راغلې یې چوگان دتیغ پلاس کښې    دې بازی‌ته‌دې په کاردی خوسرونه
چه حاصله ئې او یې شی له قیامه    اور خ نه لګې په مز که لکه غرونه
زمانه بیایې کاروان دګل خرمن ته    همیشه پخپل بوستان کښې بیایې خرونه
«شیدا» زرئې دګنجونو بر باد درومی
زرداران چه‌غنچه وار کا پوری وروونه
ستاچشمان کاله‌جهان‌سره جنګونه    چه‌همیش‌ئې په کمان کړل خدنګونه
په‌هوا کښې دی مدام تازه ګلشنه    دبلبل په ځای پر واز کوی رنګونه
نن جلوه په‌څه ادا دشمع ګل کړه    پروانه لکه بلبل کا آهنګونه
په‌سکون‌می‌ئې پرهاردخاطر روغ شی    غو څوی می لکه لار په شلنګونه
دصیادله‌دامه خلاص‌لکه کبك نشوم    که‌دیوار دخپل ایوان کړم ګرنګونه
چشمه ګوره دآفتاب دمهتاب جام‌هم    د فلك په سر د جو شیو کر نګونه
«شیدا» کاردی ډیر مشکل دآزادیه
مقید ګڼه صحرا په فر سنګونه
په‌خلاف دخپل تأثیرسره سائی شوه    چه دستر ګو ئی لازیاته ګویائې شوه
همیشه دزړه کلام اروی بی صوته    چه نصیب‌ئې لکه کلك شنوائی شوه
آئینه و رته آفتاب نیسی د صبح    بیا شپوه‌دګلستان خود آرائی شوه
له آسمانه ئې کم‌نه‌دی بام دخونی    دفتنې په کار ئې ختمه رسائی شوه
تهیه ئې د زندان بو یه صیاده    طایفه د بلبلانو سودائی شوه
زه‌دخپل فلاخن‌سنګ‌په‌ډېرهراس کړم    چه پیاله می لکه چرخ مینائی شوه

استعداد ور کړ فلك و کج نهادو په ناخن چه د کره کار کشائی شوه

ترانسان « شیدا » راضي په اژدها یم

چه د گنج په شان ئې (۱) خو نبه تنهائې شوه

ستا د زلفو گرفتار ته سودا بویه دیوانه په لوی ځنځیر مبتلا بویه

خپل جنون راپوری تنگ کړ کورو کلی ویرانه راته د پهن صحرا بویه

دمړ ده خاطر علاج په هر چا نشي واحیا ته ئې نفس د عیسی بویه

چه بې تائې د گل مخ ته‌دی کتلی

د «شیدا» ددوا‌ړو سترگو سزا بویه

# (ی)

که‌په سر باندی دې نه وی آفتا بی شکایت کوې دو پری کړ یا بی

دیوه ساعت رمی په تا دو زخ شی دذرې په طور وا خلې بی تا بی

نور دې‌مرگ لکه‌ماهی ترحیات‌نبه‌دی تحمل مکره ز نها رد بی آ بی

مزاحم زما دسر سنگ وخشت نشو دصحراغو ندی‌یم خو ښ په‌خرابی

دل تنگی می‌ده سر ور پریشانی هم یومی جام لکه غنچه بل کلا بی

« شیدا » وران شي‌په تعجیل کښې‌جوړ کارونه

شي غلط صحیح تقرير له شتابي

دروازه ئې چه د گنج نه وی پرانتی تل ئې خپژی په جهان لکه مارختی

دشانې‌په‌شان ئې بناخ وی بې ثمره چه‌له کاره د پریشان و باسی گتی

---

(۱) په شان می (ج)

د مقیم په د ود ئې نشو خاطر جمع چه ګلونو په چمن کښې ملا واړتې

په‌قصور د بصارت جهان تاریك شو

د آفتاب شغلې که‌نه‌دی «شیدا» تتې

چه‌بې ماوهې په‌زلفو د خیال زمنځې نواړه زلفې‌شبه‌د تاپه سر کښې ځنځې

په نسمت د شور بختانو بناد یغم شي پریشانې کا سرور د جبین ګنځې

رهائې په چول مو مم لـه درده ستاهجران کړ زمازړه‌د کوګل‌بنځې

د ګرد باد غونډی به‌ګدشم له‌سروره که‌مې واچوې په سرد ها ورو نمنځې

استمداد مه کړه «شیدا» له نا قصانو

تقویت د ملا هر ګز نشي له ملنځې

چه دجوش په‌شعله سیخ و کباب‌سوځي ما ګرمی دمغه هسې شراب سوځي

~~کله تا~~ په رضا بند د نقاب وا کړ ستادمخ په شعله خس و نقاب سوځي

داغ یم زه د زمانې له سر د جوشه که دصبح په‌نفس کښې آفتاب‌سوځي

ستا دمخ په‌شمع سوی چا حساب کړل وایه چرته پروانې په حساب‌سوځي

په‌راتله ئې هسې ګرم خپل عنان کړ چه مې‌خونه‌په‌آتش دسیلاب سوځي

برق ئې نه‌رسی دخوی و کار و بارته د حباب دانه‌خرمن د ګرداب‌سوځي

برق دې هیڅ دماغ سوزی په‌داباب نه کا

د «شیدا» خرمن په‌جوش ددریاب سوځي

څه‌آرزو لرې‌په‌زړه دچا په کوځې چه‌دې‌سر په قدم تل په‌شان د ګوی ځې

باریکی ئې په‌لغزش طی کړه تیاره‌هم که‌هر څو لکه شانه په‌لار دموی ځې

تما مې کوی و بازار شي رود دو نیو چه‌یودم د تیغ په‌دود برهنه روی ځې

په محمل د مستور حسن کړ فتا ره — لهمعنی‌سره په شان د گفتگوی ځي
ته پخپله دخپل یار زیبا بوز جلبي — آو ارم خا طره ولی په‌هر سوی ځي
په دیده لکه حباب ځم بي سرا غه
ته به‌خه‌ر نگ د «شیدا» په‌جستجوی‌ځي

چه گذر (۱) می چمن باندی‌بي تادی — گل ئي کله لکه‌شمع دلکشا دی
تور لیمه به ئي او به لکه قلم شی — چه سین په هغه کوښلی (۲) دلربادی
په رخسار ئي‌ښاماران گوره دز لفو — هیڅ پروانه کاله‌چا که سپین‌صبادی
نرم‌زړه‌دي‌په‌سا سخت لکه گوهر کړ — ستاله‌جوره‌مي‌زړه‌چاودصدف آسادی
د ر نگین شعر مصرع کړه‌چا موزونه — که گلگون‌لباس ددي سروبالادی
خپل گنبذ لکه حبا ب لره بی د ره — آمیز ش له دي غا لم سره بلا دی
غنچه وارئي‌کړیوان‌ونیسه‌چه‌ناست‌وی — لکه گل په آشنائي کښی‌بي‌وفادی
د شبنم خا طر په وصل د گل سوړ شو — د هجران‌په‌اورئي سوی‌تور‌بورادی
درست‌صورت‌په‌غشوډك‌غنچه‌وارخوب کړم — ستاد تیرزخم زمارا حت افزادی
سا ده لو حه به و فا غوا ړ ی‌دښکلو — د تصو یر عام له چا سره ا شنا دی
لکه بید هسی مجنون شو بي دیدنه
«شیدا» کله مخ لیدلی دلیلا دی

هر یو ز خم په نسبت ز ما ر سا دی — درست‌صورت‌مي نازك‌دل‌لکه‌مینادی
محرو م هسی شو عا لم له بینا ئیه — چه‌نرگس ولاړ په‌فکر دطوطیادی
له‌سختی‌ به کله‌خلاص‌په‌روغ‌صورت‌شی — هرفرهاد د بی‌ستون‌سنگ خارادی
په افز اط ئي د تا ختن زیرو زبر کړ — د تاخته‌جهان لقب ار ض و سمادی

---

(۱) که گذر (ح) (۲) ښکلی (ح)

چه‌په برق ئې دخندا خرمن سوخته‌شي   دگلنام اېښې په‌داغ مگر دانا دی
زما نه مگر عطا په محل نه کا   چه کهن فلك داهسې بې عصا دی
که دانه ئې په خرمن دمزروع نشته (۱)
د عنقا په طمع دام اېښې «شیدا» دی

اوس زما ددېروا وښکو کم حساب دی
په‌آستین کښې مې دریاب لکه گرداب دی
په چشمه به دخپل آب صاف و شسته شي
که رنگین ئې تیغ دمثل د آفتاب دی
دسایې په شان ئې نمر کا خولې و چې
چه تارك لکه شبنم د دې اسباب دی
چه مژگانو ئې کړل سازمگس رانو نه
په چشمانو ئې اثر د شکر خواب دی
د دوران ز نبور دی هسې عالم سوی
چه په‌ښاخ کښې پرعسل سیخ د کباب دی
چه په‌دادورنهاد وی چا کج کړی
لکه موج هغه تل په آب و تاب دی
چه روشن ئې په‌انوار تمام جهان شو
لائې پروت لکه‌آفتاب په مخ نقاب‌دی
و دیعت له اهله څه د تنگد ستانو
چه ساحل سره پهلو وهی دریاب دی
هم کمیس وی کشاده په «شیدا» باندی
له غمو نو درست او به لکه حباب دی

---

(۱) هیڅ قادر په تهیه ددانی نشو (اس)

که دیار په صورت یارشي څه عجب دی — رمشال ته ئې نظر کړه روزو شب دی
هیڅ منت لکه غنچه د ساقي نکړم — په مینا کي مي شراب د خپل عنب دی
ستر ګه نه سوځي دخس اه نا مردانو — که همه لکه ایری آتش نسب دی
ستاد مخ په جستجو چراغ په کف وری — آئینې چه نن را غلي د حلب دی
په صحت دا بدان مری په شان د شمع — چه زنده د محبت په ګرم تب دی
شك ئې نشته (۱) د مردن چه ئې نفس شته — د آتش شعلي (۲) په باد کښي جان به لب دی

نتا یج ګوره «شیدا» د بلندی
په سینه چه لاري جوړی دمدرب دی

په ګردش ستاد چشمانو جهان ډوب دی — که و ګری په ګرداب د طوفان ډوب دی
چه خجل نکړل د تا لب و دندا نو — لعل و دریه دا آب و لی داشان ډوب دی
هم طالع دهغه تیغ د جوهر زه یم — چه ئې تل په خونین اوښکو مژګان ډوب دی
تر عرق د خجالت ئې بهتر شماری — نه مردان که په لوی موج دعمان ډوب دی
څه حاصل کړه لهمانې ساده لوحانو — که قلم ئې تل د رنګ په ایوان ډوب دی
په زورق د تختې وخیژی ساحل ته — چه مدام د تخت په غم کښي شاهان ډوب دی

«شیدا» نکا نا خدا د نجات سعی
چه داوښکو په دریاب کښي چشمان ډوب دی

خپل مردن د تا مهجورو ته راحت دی — د سوزن زخم دلوی پرهار صحت دی
خوابیده بخت مي قیام په خواب و نه لید — لکه ظل افتادګی زما قسمت دی

(۱) شك ئې مکړه (ا س) (۲) دخراغ شغلې (اس)

دمزار لوح مې وينې پرسش نکړي        چه دې سور دا رنګ قلم په خه بابت دی
خپل ګوهر مې لکه ماه په سبا کم کړ        تيره بخت مې سارق د شپې ظلمت دی

دصدا غوندی آزا ديم له حنجره (۱)
کله قيد د تعلق زما عادت دی

بيا راغلی په چمن هغه ګستاخ دی        ونعظيم ته ئې ولاړ د ګلو ښاخ دی
مهيا په شنه آسمان برق وسيلاب شو        چه ويران مې لکه شمع بلند کاخ دی
هر نفس يکښې بلبل دفرياد ريز کا        دقفس په شان مې زړه سوراخ سوراخ دی
ترې واته لکه شرر په سر ليمه کړی        که وطن دې په مثال دسنګ ولاخ دی

په دا حال د کريم فيض «شيدا» ګوره
لاس ئې تنګ لکه مينا زړه ئې پراخ دی

دا ددې غنچه دهان دلبو خوند دی        ګل شکر که نيشکر که شکر خند دی
بادرا وړی جهان سوزه شعله وينم        که عنان ئې ګرم شوی دسمند دی
نه ئې څه په خاکستر دامن افشانځی        ستادمخ بلا ګردان سوخته سپند دی
زياتوی زور د کمزوری له چپره زوره        داشعار بحر په فرد د کاغذ بند دی
په مثال لکه سا حال دی دلوی بحر        افتاده تر سر کشانو سر بلند دی
دحباب په طور څه سر آماسی کړی        دبنيان ضعف دده ګوره لوی پند دی
ځار پدده د غلغلی شنا ور نغری        تملق دد ښمنانو لوی ګزند دی
په آفتاب باندی سايه ګوره غالبه        دزوال فکر به کا چه خردمند دی

بې سوختنه ئې مردن دی لکه شمع
د «شيدا» طوريو څه مشکل پسند دی

---

[۱] له ځنځيره «اس»

نوی خطدې ښکاره شوی په رخسار دی
قلمی د خوش نویس په خط گلزار دی
د آسمان پشان به څه فتنه بر پا کا
چه لباس ئې نن تمام ستاره دار دی(۱)
په گردش کښې ئې دسترگو ابرو وینم
که شمشیر ایښی په څرخ زما خونخوار دی
د ماښې په وقت نازك لکه شیشه وی
په ستم کښې ئې زړه کاڼی د کهسار دی
په فراش لکه شعله د شمع نه مری
د رشتینی مین مرگ په سر د دار دی
هیڅ علاج ئې لکه ما ته مینا نشی
د «شیدا» په زړه یو څه د غم پرهار دی

تمامی حلقه پیچیده مار دی — که په غاړه ئې آفت د چندڼ مار دی
له یاقوته ئې شعله په هر دم خیژی — که گوهر شبچراغ تمام انوار دی
نن صفت گوره د گل شکرتری شو — ستا تر لبو پوری څه رنگ شرمسار دی
پوشیده چشمان کړه وا د ناز له خوابه — شگفته بویه نرگس مخ د بهار دی
د مجنون د آه لوخړی دی چه خیژی — که بل شوی د صحرا په دامن نار دی
پرې دیده کړی د غزال یقین د سیوری — جوړ په دا خرابه کوم بام و دیوار دی
چه کا گل ئې آشفته د سحر باد کړ
د «شیدا» په شب بخیر کښې تکرار دی

---

(۱) دا کبود اسباب ئې درست ستاره دار دی (اس)

که دسیل په موج معبر د جهان پر د ی
لاهر بیت ئې د دیوان په سا مان پر دی
په مزار می د گیا ه ښا خو نه نی شو ل
لامی زړه په جو ش د آه و فغان پر دی
کـه خسته ئې د هر لو ر په نمك سو ی
لا په خوان کښی د آسمان نمـکدان پر دی
و ړی زه لکه مخمل دغفلت خوا ب یم
که په شور کوی و بازار د کا شان پر دی
پـه احو ا ل ئې شه خبر عز یز د مصـره
په ښا لـه د بیـگنا هو ز ند ان پر دی
خو یو گـل می د لنشین لکه غنچه شو
که د گـلو په ا نو اع گلستا ن پر دی
ته هغه به لـکه گل د هر چا خو ښ یې
څو دې خوان په کلیجه او په نان پر دی
که ا د ا دلیلی نشته « شیدا » ر لی
په شورش دلوی جنون بیا بان پر دی
نما یا ن ر ا ته یو مخ شا م و سحر د ی
هیڅ خبر نـه یم چـه شمس یا قمر د ی
هیڅ برش ئې عر یان تیغ له لاسه نه کا
چه په طو ر د هلال سایه پرور د ی

چه خالی نه یې یود م له قربانیه
هر زمان د تا په کور باندی اختر دی
په اثر ئې نشول پوه د سنګ رګونه
ورغلی چه د غره په لاس نشتر دی
چه بیا نه موند هیڅ شانې له باریکیه
عجب مو په د ادوران د دې کمر دی
دپتنګ په شان دهسی میا د ښکار یم
چه دانه می د ګلدام سوزان شرر دی
سر می کوز دی د آسمان بلند همت ته
چه نیولی ئې هر چا ته خپل ساغر دی
راغی جنګ د محتسب په میخواراتو
نن ئې بیا شب مهتاب تیغ د سپر دی
دآفتاب چشمه ئې مخ شعاعی خط ئې
را شه ګوره نوشته په آب زر دی
باریکی ئې ده تر موی دلاری زیاته
چه «شیدا» د ګلر خسار په طلب سر دی

قیل وقال دچادحسن ګورا کوردی
دبازارغوندی درست ښهرشور ماشور دی
دمجنون دآه لو خری دی چه خیژی
که بل شوی د صحرا په دامن اور دی

محبت وژلی یا دشی پس لـه مرگـه

نه چه مـړ په توده تبه لـه اور دی

معطل په مرغزار مکړه نازکي

د هلال په لاس ور کړی آسمان لور دی

عجب برق یم دسحاب پـه طـور سوی

چه په آب کښې مې صورت الکه دسکور دی

پری محال د خوب لیده وی که او نه وی

چه دېښې پهشان دزړه پهستر گو کور دی

از الهٔی لکه داغ په وینځل نشی

چه مې پوری په لمن د مینې تـور دی

«شیدا» څه کړې د دې وقت رشته داری

د سوزن زخم پـه زړه د هر ا نځور دی

په احسان دابر کله رنګ آمېز دی

په شعله کښې مې بهار کله ګلریز دی

نه تنها زما د زړه سینا شو ه هـاته

یو حلب د تـا دلا سه ریز مریز دی

دا تېشه په لاس څوك آخلي بې فرهاده

کو هکنی کله مقدور دخوار پرویز دی

جست وجوی مې لکه غم په هغه ځای کړه

چه تري کړی د سرور عالم ګریز دی

عطاری کاندی سبا په داچمن کښې
په غربال د گل عجب غالیه بیز دی
په امداد دسپکو هیڅ اعتماد نشته
تل دبا دله دسته گرد په افت و خیز دی
د طلا ترصیع د تیغ په جوهر نشی
خپل هنر بی قدر • (۱) کړی خاطر تیز دی
احتیاط کوه «شیدا» له سرده آهه
سر د نفس دصبح څه شعله انگیز دی
په سپین مخ چه توری زلفی جانان پر یبزدی
تما شې وته په ورځی ما ران پر یبز دی
په خاطر مې لکه گرد جا نفشانی ده
که می باد دهغه شوخ په دامان پر یبزدی
که ایمن لکه ساحل پاڅي له بحره
استغنا به دي یو نوم یجهان پر یبز دی
دا سباب په گلدام کله آزاد نبلی
سرو برگ لکه بهار په بستان پر یبز دی
لکه غشی هسی سر په میدان مه زده
چه فی الحال په کشاکش کښې میدان پر یبزدی
زه «شیدا» ئې گویا شاه دهفت کشور کړم
که یو دم می پخپل طور آسمان پر یبز دی

---

[۱] په قدر [اس]

چه‌سوخته ئې کور د نام‌و د ناموس دی　همسا یه دپر وا نه‌څکه فانوس دی
همسری ئې په کوم سوز کوې بلبله　چه‌له داغه ئې شغله خپرې طاوس دی
په حاصل نشته قدرت د بې نصیبو　تشنگی‌ سوی له‌آب‌سره آب نوس دی
په معنی د معنی پوه نشوم باور کړه　ما کتلی‌درست صراح تمام‌قاموس دی
دحلب په‌شان می‌زړه ووت له لاسه　آواره په‌هندو سند په روم وروس دی
زمانې که‌ئې گردن په‌نیول خم کړ　دآسمان کبود په‌دودرومی‌شموس دی
کوم صنم ځنی خاطر په‌داشان یووړ　رگ‌سنگ‌د کوه زنارصدانا قوس دی
دآسمان‌زاله پرسرو په‌سپینو کښلې　آرایش لا په شان دنو عروس دی

نه‌قیام‌نه‌ئې رکوع نه‌ئې سجود شته
د «شیدا» نمازپه‌دامعنی‌مع ؟ وس دی

ستا په مهر کښې آفت‌دځان‌را پیښ دی　داخند اراته پمثل دتور بریښ دی
چه‌پرواز دزړه په‌زور کړمه‌له‌غشی　په‌وزرومی‌دام نښتی لکه سریښ دی

دسوسن په‌شان دی‌پوه په‌ژبه نشه
ستاد آب په تجرد کښې «شیدا» ریښ دی

ستا په هجر کښې سرور زما دروغ دی　که‌په کور کښې‌می‌دیوارد قهقه‌روغ دی
وآفتاب وته کتی له‌شرمه نشی　چه‌صاحب لکه دیده دکم فروغ دی
بلندان دزمانې وا ړه‌په دوک دی　په‌سینه کښې ئې‌سنان پشان د طوغ دی
گنج‌موندە‌په هوښیاری‌نشی‌نادانه　دښهار مخزن موندلی کله‌روغ دی

په مسکه ئې «شیدا» مشه لقمه تره
چه جبین ئې مدام ترش پشان ددوغ دی

زړه مې ډك دهغه نمر په جوشان ثف دی — چه سحر غوندې مې تل په دهان کف دی

څه بنا په دا رباط مور وملخ کا — چه سلیمان دئلو په فکر هم آصف دی

هره ونه سر کښې آه دی په داد ښته — غو ر ځولی مې نظر په هر طرف دی

د مجنون قدر په ملك د صحرا ګوره — و تعظیم ته ئې ولاړ دو نو صف دی

تا د تیغ موج عریان کړ تنده سیله — ما خپل سر لکه حباب ایښی په کف دی

دغمجن سینه و هلو ژړا په کو کې — ستا په بزم کښې سنګدله نای ودف دی

د افغان له شعرا په «شیدا» باندی

دادب په مقتضی دخان شرف دی (۱)

مګرنن په دا کتاب کښې ستا سبق دی — چه رنګین ئې لکه ګل هر یو ورق دی

چه مصدر زما دزړه هر یو نګین شو (۲) — ځویو ازی د تا نام ځنې مشتق دی

چه انګر ئې هیڅ سبب د تسکین نه شو — لکه موج د تباهی زما زورق دی

ستا د تیغ آفتاب هنوز نه دی ختلی — که ګردن مې خون آلود لکه شفق دی

په راوړه دخپل دیدن تغافل مکړه — ګل حیات مې لکه برق خویو رمق دی

«شیدا» ګډی د آتش په رنګ اوبه دی

که ښکاره ئې په رخسار باندی عرق دی

په مثال هغه رخسار دا ینځر ګل دی — چه واله ئې د ا زما نادان بلبل دی

خط ولب دهغه شوخ ګله جلوه کا — سیه مست ساغر په لاس درنګین مل دی

چه نظر ئې په کینه د آینده وی — نه پوهیږم تو کل که تأ کل دی

---

(۱) دخان څخه مطلب «خوشحال خان» دی. (۲) دزړه لکه نګین (پ)

بادئې هم په جوار نه دی گستاخ شوی — آشفته ولی په شان خپل کاکل دی

په دقت کښېږي کره غور سخن دانه

د «شیدا» کلام محتاج د تأمل دی

تپیدن لکه بسمل زما د دل دی — قطرات می د سرشك خون بسمل دی

آئینه شوه سراپا د حیرت سترگی — تا چه مخ ورته نیولی مقابل دی

زما زړه لکه انار گل په دا چمن کښې — خو تندها و گرم روئی و ته مائل دی

د فلك شمع آرزو د گلگیر نه کا — څه محتاج ورو شن کرته روشن دل دی

غم به څه لره د خس و خاشاك کاندی — د گوهر له آبه لیری خود ساحل دی

«شیدا» لور وړ کړ په لاس آسمان مهتاب ته

تاز دی هیڅ په کمال نه کاچه کامل دی

نن دی خښتلی بیاد پیاله و پنو جام دی — مستانه دی په دا بزم کښې خرام دی

په مڼه ئی دفتر اك له هستی درومه — گرم کړی برق عنان ذرامه انجام دی

د عقیق په صفحه نه دی چه بهورك شی(۱) — په نگین د بیستون د فرهاد نام دی

پیچیده دی پر رنگین عذار کاکل کړ — که دی اینبی عندلیب و ته گلدام دی

دوازه زلفی دی له خط سره آفت شوی — سیه مار په نظر نه راځی نما بنام دی

چه خالی نه شو یودم له گردیدنه

د «شیدا» په زعم ورك د چرخ آرام دی

هر قاصد چه روان شوی په تور تم دی — پر بو تلی هغه دم لکه شبنم دی

دلیلی په رگ کښې نشتر قیس مجروح شو — که ئی نه وی د اصفت کله هغه دم دی

(۱) حك (پ) هاك (اس)

پەمعنی کنبی ئي لپدە کنبلی صورت شی کەمبنی پە دادیوان بیت الصنم دی

چە جرعه ئي پە ساغر نهشه دمیو پە قطرە ئي قادر نه بو لم کە یم دی

نوی خطئي شو نزدی دلب شـ ر ته کەپەلاس کنبی ئي تعلیم شیرین قلم دی

ر غبدە ئي لکه برق معاً فو راً دی تاچه ایښی پە هر زخم خپل مرهم دی

لکه نمر چەسوزان داغ دشپی پەداغ شی زما داغ پەداغ داهسی بې اهم دی

چە سایه کاندی مدام پەسرد ستر یو

«شیدا» شام دغریبی عجب عالم دی

عجب زیب دخط و لب گوره بهم دی وخوبی ته ئي حیریان اقوت رقم دی

پـری ز هیر لکه پخپلو بـنو نه یم چه زماپەستر گو ایښی چا قدم دی

چری نەچەئی داجام پریوزی لەلاسه عجب مست دجاه پەمیوشاه جم دی

چەهردم آخلـی تیغ زمـا گـردن ته ستالەجورەمی زړەچاودلکەقلم دی

پەداسروستر گوئی اوریه بلبل بل ر چەبیدار لکه غنچه پە صبحد م دی

وپرهار تەمـی نمکـ راو ړه نـا دانه دکباب پەزخم ایښی چا مر هم دی

نن له تاسره کـاز یـب زمـا بها ره ترا ندام کـه گـلبدن دی یاشبنم دی

«شیدا» مەغواړه وفا لەسیه چشمو

دآهو غوښـی ئي نال نظر پە رم دی

اعتماد مکړه هر گز پەآسمان باندی شنه کوتره پەهوا کنبی بازی کاندی

ددور انسرد جوشی هسی تقا ضا کـا چەپەاور کنبی دانەسبزه شی دسپاندی

لادی ستر گی لکەزر ک پەژړا سری دی دقهقه پەخندا شین شی چەوخاندی

کلەبند پەدیرخونریز دعشق بجادەشوه درنـگینو اوښیو لاری وی چلاندی

پەصـو رت داو ښیو درغلی بی صبره　　قافلې دخو زو زړونو لحل بلا ندې
چه ئې زلفو دمپەدم کړه غلادزړو نو　　پەرخسارئې مشاطې کړې آویزاندی
دائېوا غو ستې لەشر مه لندی ختی　　ستا دقد پەد ود نه دی سرو تاندی

خەحائل راوړم «شیدا» دچرخ جفاته
سوځی ما لکەزره تر بام دلا ندې

چه کـلـگونئې جستوخیز دجو لان کاند ی
لکەرنـگـ هسی گر دش پەمید ان کـاندی
زهلال نەئیخو کـ تیغ دصیاد وائی
پەنر کسئې دهوسیو گـمان کـاندی
دقهقەد یوارئېخپل کوەو کو هساروی
زر که کلەداخندا پە ایوان کـاندی(۱)
زبونیئې دگردش اثرجو شی کـا
چەخندا پەسحر سبزآسمان کـاندی
نمکدان دهغه شوخ لەدیره شوره
خسته زړونه بې آ تشه بر یان کـا ندی(۲)
پەسوزن دخار علاج پەانبو ر نشی
دخوردانو کـاربەولی گـلان کـا ندی
کـەپە درئې صف ولاړی «شیدا» خەشی
ستر گـیوایەچه نـگـاەپەمژ گـان کا ندی

---

(۱)(۲)دادوه بیتونه د(ح) لەنسخیڅخەرانقل شولپەنورو کښې نشته

کەئی سرخی لـکه شمع یکزبان دی     خلاف نه کادخپل قول چەمر دان دی
هر کیسەئی پەمثال دخالی لان شی     چەپەشان دفلاخمن کاسه گردان دی
پەخندەدی هر ثمر پخپل شاخسار کنبی     چەموقوف دنمك چش پەامتحان دی
هیڅ خبر پە تما شیا دجها ن نشول     چەاسیر لـکه تصویر دخپل ایوان دی
لکه گلك دنو مشقانو صفا کم کـا     چەپەحرف باندی ئی حرفوی پر گویان دی
چەاختر لـکه آسمان لری له کـو رە     وهلال تەئنەمحتاج هغه کسان دی

«شیدا» واستوه رنـگین اشعار لەهنده . .
ستالەرای سرەآشناد «سرای» یاران دی

دادشوخ مشکینی زلـفی یارسن دی     چەغزال پری قید شو ی د ختن دی
لکه شمع لە گرمی خولې خولې شو     چەراوری هرپتنگ دپر باد زن دی
مـاسـاده دزړه مینا وه ور سپارلـې     کەد وضع پە تیشه خـارا شکن دی
چه تـر خپله سره تیر وی لـکه شمع     خپل مشهد ورته عالم دا نجمن دی
مر دبه ځەغو اری ددی ایام لەبطنه     دا صد ف پە مر غلر ه آ بستن دی
هیڅ سراغ ئې نشی‌مو ند له بر همنه     زمـازړەپه یـوه هسی بت مین دی

لـکه صبح پەبیاض رنـگین اشعار کنبې
د «شیدا» دطبع نمر عجب روشن دی(١)

هر یو کـال پە نسبت سوی د گر دون دی
چەسوختەئی پخپل قرص همېش بیلتون دی(٢)
فـریفتەئی پـه علود جـا یـگـاه مـه شـه
دجـهـا ن فـرو مـا یـه پـه همـت دون دی

---

(١) دلتەد کنبی لغت له کنبل (نوشتن) ځخەدی.     (٢) همیش بیتون دی (پ)

د زړه حال می لکه شمع ظاهر نه شو
پېچیده مکتوب می سوی په مضمون دی

التفات می احوال په احوال دخا را بویه
دمېنا غو ندی می زیست په جګر خون دی

عاقبت به د مرا د په خندا ښاد شم
د لتنګی لکه غنچه زما شګون دی

دبستر له غمه خلاص یم بالین څه کړم
چه تر سر می لاندی کړی خپل زنګون دی

دسحر غو ندی ئی شیر پکلام کښی خون شو
په «شیدا» د فلك کار عجب وا ژون دی

د آفتاب په شفق سور ګردان ګردون دی
که تر تا لاندی د تا تازان ګلګون دی

چه ښیښه ئی دز ندان په حلب نشته
چاړده کړی دهغې پری افسون دی

په نښتر لګی سور او ر له خپله تنه
ستا په زعم کښی سرسبز بید مجنون دی

همیشه کوه طلب که پر مایه یې
د کښتی کچکول په لاس روان جیحون دی

لوی به ګله سدد وغواړی له خورده
تالید لی خو د قیام دبیستون دی

مکدر به په صحبت اهل صفا شی
آئینه په لاس ولاړ ګوره زنګون دی

دا سباب په تهیه ئې مضطر نه وی
په نظر د دور بینا نو نن پرون دی

«شیدا» څه کوی بهار یائې سیلو نه
ښایسته تر زیبا ګلو جګر خون دی

ظاهر مهر فلك وار باطن دې کین دی
لاندې کړی دې جهان په څه آئین دی

دخپل ګل په خرمن برق لکه ګلریزم — نا امید می له حاصله خو شه چین دی
په څه خم دې لکه برق دې رنګین کړی — تا چه سوی په دامن روی زمین دی
دخاطرو پریشانی له هر چا نه ځی — دهر عالم لکه صحرا ګوشه نشین دی
تل د شمع په صحبت کښی کافور سوځی — هر سړی متأثر له خپل قرین دی
راښکاره ئی پر یوا ته په دم در حال دی — چه په سر ئې لکه سر تاج زرین دی
په خشکی د خپلو اوښیو قادر نه شوم — ذرست لباس می د فانوس په شان آستین دی

د تحقیق سترګی بینا کړه «شیدا» ګوره
اوی د فتر د ریزه می تورو سپین دی

وری داغ ستا در خسار حسرت آئین دی — چه درست خاک ئی په مثال د ګل زمین دی
په ګمان دحنا مه ور څه محفل ته — په شعله ئی لکه شمع لاس رنګین دی
دلدازی لکه غنچه دهر شبنم کړم — تل د بل په اوښیو تر زما آستین دی
فرهاد مر دیار په غم کښی دائی ووې — په عاشق تریاره ګله ځان شیرین دی
دهمت په مخ کښی کم کار و نه لوی شی — پیاده ددی بساط آخر فرزین دی
څه یقین به اشتهار کړې بې تحقیقه — دسوار ه مېږی کوم آس لجائی زین دی
دآسمان په شان جهان سوځی په مهر — پو شیده په دا پرده دغدار کین دی
په هر ځای لکی نظر ددور اندیشو — په دیده ئې هر مژګان ګو یادور بین دی
زربانی لکه حباب د خپل ګنبد شه — یو نفس دی په سینه کښی و اپسین دی

په کلام د «شیدا» پوه شو کوردن ګله؟
که هر حرف ئی په ززه پروت لکه نګین دی

نبه‌ئي لخير كره دا هغه تا بنده ماه دي
چه‌په‌سال كنبي ئي ديدن گاه وبيگاه دي
چه خپل جسم استخوان لكه گوهر كا
طلبگار دبنا گوش هغه جا نگاه دي
تازه گي ئي دزنخ له سببه نه لحي
مهيا ئي په جوار كنبي دلجوي چاه دي
دگرمي بيان ئي څه كوم دچاته
لكه شمع تن سوخته پخپل نگاه دي
په قلت داسباب زيست لكه حباب كرم
بو لباس مي پيرهن هم مي كلاه دي
دحباب غونه‌ئي زيست لكه مردن شي
چه ورك شوي ئي تميز دسا ده آه دي
«شيدا» دام دنو بهار په لا له وينم
كه نبكاره ئي په رخسار خط سياه‌دي

انجمن مي لكه شمع داغ دزره دي — تنهائي مي دصورت فراغ دزره دي
پروانه ئي عند ليب دتازه گل شو — په‌شعله‌مي رنگين كري باغ‌دزره دي
په‌جنون ئي كوم بهاردي باعث شوي — آشفته مي لكه گل دماغ دزره دي
هميشه به‌ئي ستا خيال په رنها گورم — ترهغه‌چه‌مي روشن چراغ دزره دي
قراري نشته هيڅ له دېره جوشه — چه‌لبريزئي شمع وار اياغ‌دزره دي
«شيدا» نه‌وينم غزال دهغو سترگو
غوښتي‌مايه‌داطلب كنبي راغ‌دزره دي

صاف خاطر پخپل صورت پوری بند نه دی — په ښیښه کښې چا لیدلی پیو ند نه دی

ستر گی سپینی د میدان په انتظار شوې — تالا زین ایښې په پشت د سمند نه دی

اې په شان د قنا دیل خیره چشما نو — په دا بل څراغ موکور درځی گـند نه دی

دلاله تخم کجا داغـو نـه چـر ته ؟ — سمندر د دې آ تش دی سپند نه دی

خپل صورت کړه گل خشت قصر ئې گوره — رسید لی ور ته څوك په کمند نه دی

صاف دلان مومی لذت د تلخ کـا می — تا لید لی د مینا زهر خند نه دی

گردن خم په تواضع کړه رفعت جو یه! — په دا وضع آسمان وینې بلند نه دی

سرو مال په ادا ور کړه بې تکرا ره — دا سودا بازار د چون و د چند نه دی

دردمندان د درد لذت په زیرو غوا ړی — چه دوا پرې زدی و درد ته دردمند نه دی

«شیدا» د برېه را تله تنگ بې وفا مشه

دغنچې خاطر له گـاه خرسند نه دی

تیز کـا ته د دې نـگاری بې خه نه دی — دعالم سینې فـگاری بې خه نه دی

قرینه ده د شهید پـه حال ظاهره — سره لمان د دې خونخواری بې خه نه دی

په سبزانو کښې د هند عجب طوطی یې — ستا خبری شیرین کـاری بې خه نه دی

بیا به راشی خه آیت په گر یوانو نو — تله دی نن سبا رفتاری بې خه نه دی

مـگر کـا ندې پاسبا نی د مهرو یانو — دفلك ستر گی بیداری بې خه نه دی

«شیدا» بیا گـلرنـگ راغلی دی و باغ ته

د بلبلې سوزنده نـاری بـې خه نـه دې

دجنظل زړی په ما خوږې ښی دی — چه چیچلی می داو سپنو چنې دی

دیا سبان په نعرو هیڅ احتیاط نه کـا — قـا فلې د دې رباط مگر کـنـی دی

ساده دل دمال تضئیع لکه بیضه کا     سیم و زر ئې صرف په پخې په بنې دی

چه له پایه ئې نمو لکه ګل خار کا

د «شیدا» په دالار څه په کار پنې دی

دریده می ګریبان سترګې خونباری     په ماو کړی خپل آفتاب د سحر چاری

دصورت وینی می وچی لکه برق شوې     خونخواری به اوس دچا کوې خونخواری

لائې ژبې په هر دم له تندی وزې     که هر خودی ستا د ملا توری ابداری

بلبلان دیننګا نو په شان سوځی     ستا رخسار لکه ګل ریز شعله بهاری

دوا ړه سترګی ئې ملالی څه رنګ نه وی     چه همیش لکه نرګس اوسی بیماری

برې می سترګی منوری لکه نمر شوې (۱)     خط دې وا ړه شعاعی و، خوش نګاری

په بل مخ به سترګی وا غنچه وا نکړم     مګر ته را شې په باغ سبا رفتاری

رغبیده می دپو هار نیست و نابود کا     غځیده می دی بهبود په شان دلاری

«شیدا» تیغ د ګل په څه بانډی رنګین شو

که بلبلی د بهار نه دی فګاری

ما په شان دهزاره کړ ګریوان څیری     شو تمام د تا په غم کښې لپری لیری

ددانې په عوض ګل لری په دام کښې     په رخسار ئې توری زلفی بلبل ګیری

که یې ووی زما نی یو څو درهمه     ته یوسف څه رنګ په کمه بها پیری

په راتله ئې پریشان شی جمع زړونه     قافلی د غنچې زار په زړه زهیری

په مزار به دې تیا روی پس له مرګه     په انوار چه لکه شمع مستعیری

---

(۱) منور ئې لکه نمر زما چشمان کړل (اس)

چه‌خندادي (۱) دفرهادپه‌غم‌پري‌نشوه　او سه تل دبیستون زر کي اسیري

دفلك دبیر به‌څه شعاعی خط کړي　په‌تا کار دلو یو نشي که صغیري

غواصي غواړي «شیدا» داشعار بحر

مر غلري یې لیدي شي بي نظیري

په‌داوضع کړي صدف له‌ځانه اري　سرګوشي ورسره کا ندي مرغلري

لب‌ئې جام دمیوندي سکرتالي‌دي　نوي خط ئې دد کن توري لښکري

ګویائې به‌دغنچې کاندي څوك‌یاده　هري‌خولي کله‌زده کړي دي خبري

بیتابي ئې‌په‌ماتم کښي دفرهادوي　چه راولو ېږي دغره توري کمري

ورځي شپې دجهان‌مه ګڼه‌بې کاره　دبازی په فکر راغلي بازیګري

استعمال ئې‌په تدبیر دمجنون بویه　دزنځیر په حلقه نه رغیږي زغري

نفع نه کا انزوا چه انسان نه وي　که‌مدام لکه حیوان په صحرا ځري

دآفتاب شعله دماه په خرمن لګي　ځنې نه کا اقتباس دې پران سري

«شیدا» وخوره دنیا سخن چینا نو

دطو طي غذا وي تل خو ږي شکري

بي‌اجله هیڅ ژنده په‌ضرر نه‌مري　دفلك شمع په باد دسحر نه‌مري

مو افق د مخا لف لکه‌آفتاب یم　چه شعله مي دچشمي په اثر نه‌مري

په‌تندي کوه علاج دسر کشانو　داتش لمبه په‌آب دګوهر نه‌مري

تناول‌دسم عادت کړه مردهاله‌یې　مګس هم په لوزینه دشکر نه‌مري

که ونه کا سر کشي زما آهونه　په‌اسمان کښي به‌چراغ داختر نه‌مري

ژ ند ګي ئې ږي « شیدا » تر مرك بد تره

خسر وان چه په خپل تخت وا فسر نه مري

---

(۱) چه خندا ئې (پ)

چه مدام لهٔ مستئ پروت وی نکړی هیڅ اندیښې نوری
شو ساحل د محیط بحر یعنی فیه او به شوری
مشت پر د عند لیب ئې د ګلو پڅ خس و خاشاك کړ
تل دعشق په نوبهار کښې ترپتنګ پوری کور کوری
کناره لکه شفق ځی سره لمن هسکه نیو لې
په آسمان کړه خپله خونه بیا اخته د خون په توری
په سیلاب کښې مې کور ځکه دحباب په شان معمور دی
چه بنائې هرګز نشوه دل بسته په مسکن پوری
خپل قسمت ځنې وګړی په هزار ستان حاصل کړ
دحباب پیالې که بحر تل په لاس کښې وړی نسکوری
که کریم رابانده راشی لکه نمر په زرر پڅ کښې
زه په داافتاده ګی کښې ترې ګرپڅ کوم د سیوری
له سایې سره ئې نه وی «شیدا» سم د شهباز اصل
چه قانع لکه همای شي ددې خوان په لقمه سپوری(١)

اخسته خاطر دې نوی له ما وړی ❊ په رنځور پوری زهیرشی روغ وکړی
بیا به سر ستا ود یدن وته بالا کړم ❊ که می مرګ کا توری خاورې لکه زړی
چه په رقص لکه خاك د ګرد باد لید شی ❊ مګر تا زما په خاك دی ګذر کړی
که مرور دې په قبور وشی ناګاه ❊ د تصویر په شان به و دری هر مړی
ولی ونیو ستمګار په رهګذر کښې ❊ دا زما خاطر ئې نه ؤ پور وړی
نشی تلی لکه صورت ستا له دیوارم
دتامینی کړ بی پنده (شیدا) ستړی(٢)

---

(١) داغزل د(پ) په نسخه کی نشته. (٢) بی بنده شیدا ستړی(اس)

بادئې زلفې په رخسار خورې ورې کړی
که غنچې ئې د گلذار خورې ورې کړې
ترغبار دې د جولان قربان ، قربان شم
که مې خاوری په مزار خورې ورې کړی
زړ که نه اری گېسو دقرها دغم کا
شنې بنۍ ئې په کوهسار خورې ورې کړې

❀ ❀ ❀

په سپین مخ ئې توری زلفی تارپه تار کړی دي
دعا لم خونې ئې ورانې وار په وار کړې
څوك دې روغ نه دی پرېښې په داملك کښې
دغمزه توره په لاس په چا گذار کړې ؟
چه آفتاب دې دجمال شو بې نقاب په
بیا به گرم په عالم دعشق بازار کړې
مسخر دې ولایت کړ د خو بیو
غلامان به تول خو بان دهندوبار کړې
هیڅ به کم زما جنون نشي حکیمه
خپل گلداغ به راته عین نو بهار کړې
چه دزړه په هدف تل لکه سم لگی
دکنزواو بڼکو له تیره به څو زار کړې
خپل نا کام به دیوانه « شیدا » دربیا ئې
که دا من په کانو ډك لکه کهسار کړې

ځه‌عجب‌دی که‌په ګل پوری خنده کړي

دچمن آزاده سروی هم بنده کړي

په سرو وینو کښې تپان هره‌فا خته شي

چه‌په شان‌دسرو‌ساز ګزولینده کړي (۱)

ناز پدې د مرا تب په بلند یو

دغبار په دو دئې ځه پرا ګنده کړي

غم به نه کا بې سا مان دو یرا نیه

که‌آسمان په‌مخ دمز کی افګنده کړي

په عدم دا سباب راست عالم کجروشي

کار دګزه کوی چه‌غشی‌پېری ګنده کړي(۲)

دهدف غوندی تدبیردمرهم نکړم

که سینه مې په زخمو نو آګنده کړي

له طوطی سره‌چا کړی‌تر یخ کلام دی

چه« شیدا »سره‌خبری ناخونده کړي

چه‌ګردش‌دسر مه‌سا چشمان پیدا کړی

دفتنې سره(۳) بلا آسمان پیدا کړی

په‌آستانئې لاچاسر کښېښو(٤) راستانو

چه کجی دخپل نهاد کمان پیدا کړی

---

(۱) ته‌چه ګز په‌شان‌دسرو په‌لنده کړي( پ )

(۲)چال‌دګزه کوی چه‌غشی‌پرا ګنده کړي(پ)

( ۳ )د فتنې لره ( پ )

( ٤ ) کښېښی ( اس )

دآغوش پەدام بند څەرنګ شي غزاله !
پە جنبش دپر کاه کمان پیدا کړی
تل تر تله به ئې رو غ لېو نی نیسی
کە پە طور دصحرا دامان پیدا کړی
لەخزانە بە کړی بیم پە هغه قدر
څو چەدېر لکه بهار سامان پیدا کړی
زما نه به درته خو اندالوان کېږی دی
ته کە وضع دفضول مهمان پیدا کړی
دنرګس پە شان ګران درنځ تشخیص دی
د« شیدا »دد رد به څه درمان پیدا کړی

نشته بوی ستا د قمیص پە درست جهان کښی
څه امکان لری پە مصرو پە کنعان کښی
څوك بە ستا دجمال سیال غواړی پەمځکە
دارنګ شمس و قمر نشته پە آسمان کښی
کە نصیب دصبا ستا لر زان عنبر شی
نور بە کښې نېږ دی قدم پە ګلستان کښی
چەپەشان کښې ئې ناز ل نفسی کلام دی
څه بیان شی پە غزل و پە دیوان کښی
څوك بە ستا د آستان خاك برابر کا
کە آسمان راوړك ګوهر پە خپل میزان کښی
کەئې خلد کەئې فردوس دی خوهمدادی
جسم خاك شەد « شیدا » ستاپەآستان کښی

سبز رنگ لکه‌سبا په گلزار راغی     مبارك شه ليو نيو بهار راغی
آبله ئې دمر دم گوره په پا کښې     دنظر په‌لاس مې ځکه دلدار راغی

خان ومان خومې دعشق په قمار بايله
د بازۍ نو بت په سرو دستار راغی

بيادې راوړې په‌شيدا تار په‌تار زلفې     که‌پرېشانې کړې‌سنبل په بهار زلفې
گستاخي وه دشانې شوخي دباد هم     بې څه‌نه دی آشفته دنگار زلفې
ور ته و گوره عجب دور قمر دی     پېچيده دهغه شوخ په رخسار زلفې
راغله نن نوې فتنه له چولان گاه     چه‌ئې راوړی په‌رخسار دغبار زلفې
چه وِر ځي له‌دراز يه ترز مينه     قدم سم نه ږدی له نازه په‌لار زلفې
دشانې په دود پيدا کړه رسا فکر     باريکی‌لري‌زما دا شعار زلفې

له کمنده ئې «شيدا» څه رنگ‌رها شي
چه شيران دد ښتې بند کا په تار زلفې

که هر څويې په‌تندی‌ږدی‌اري‌زلفې     شانه‌نه پر ېږدی دمستې خورې‌زلفې
رها ئې يې د سينې په صحرا نشته     اچوی دزړه و ښکار ته پرې زلفې
ته‌به وايې دنما ښام په‌وقت شفق دی     چه‌ور بل‌په گلو شور کاندی‌سری‌زلفې
لکه‌ښاخ چه په افراط دگلو خم شي     خميده له‌خپل عذار سره وری زلفې
دعرق عالم ئې نيست په جدائی شي     چه‌له‌مخه‌يې باد واخلی چېری‌زلفې
خلقه‌يې‌ځی لاهوړه پيچو و تاب کښې     چه‌دمخ په‌رو ښن آب کاچيری‌زلفې
ورته و گوره په گل بار نده مېغ‌دی     په‌رخسار يې‌روعرق‌په‌قطری (۱)زلفې

علامت داوی آفت دی «شيدا» گوره
په سپين‌مخ يې لکه گرددميری زلفې

---

(۱) دا بيت د(پ) له نسخې څخه رانقل شو.

خواب دې سترګې په بل شان کا شوخي شنګی
لکه سترګې د مخمل په خواب ګلرنګی

ترهغه چه لا سبا دبستان نه وي
په چمن کښې وي غنچې د ګلو تنګی

خو د بېنې به دې آخر نشي خود بينې
آئينې که دحلب شي وارهٔ زنګی

مګر حال دعا شقانو يکسان نه دی
چه مرغي دچمن نه دی هم آهنګی

دانشه ددې بنايست نه ده نو څه ده ؟
هميشه مست وبې باکه غوله دنګی

تېربده له خپله کا مه دشوار کار دی
قافلې دی په داد ښتی « شيدا » لنګی

دل بسته يې مه شه هيڅ چه بې بقا وي
فرض کړ مـا که ستا د دام صيد عنقاوی
اعتراف په اعجاز وکړه د پا کـا نو
په آستين کښې د ګرداب يد بيضا وی
خيال ئې عالمګير شو عجب نه دی
که ليد لی چير ته خواب د مخمل پا وی (۱)

---

(۱) : دا بيت د(پ) او (اس) په نسخو کښې نشته،

د میده ئبي دی په شرق د ګر يوان صبح
چه ار تی چيری، بند ګلګون قبا وی
لکه ورك چه په آفتاب دزرې تاب شی
د کا کل کړه ئی هسی په مخ و اوی
دآ سمان په شان باری له هرچا کاندی
کور په کور ئی دباز یو تماشا وی

❀ ❀ ❀

په ګردش ستا دچشما نو جهان ډوب وی
که وګړ ی په ګرداب دطوفان ډوب وی
چه خجل نه کړو دتا لب ودندا نو
لعل ودر ولی په آب کښی داشان ډوب وی
هم طالع دهغه تیغ دجوهر زه يم
چه يې تل په خونبن اوښکو مژګان ډوب وی
تر عرق د خجالت یې بهتر شماری
ښه مردان که په لوی موج دعمان ډوب وی
څه حاصل کړل له مانی ساده لوحانو
که قلم یې تل درنګ په ایوان (۱) ډوب وی
په زورق د تختی وخیژی ساحل ته
چه مدام دتخت په غم کښی شاهان ډوب وی
«شیدا» نه کانا خدا د نجات سعی
چه داوښکو په دریاب کښی چشمان ډوب وی

---

(۱) : الوان ( اس )

د عاشق به له غمو نو فراغت وی
له سختیہ که سنګ رهاپه‌روغ صورت وی
وصال ګله دی آسان دخوش قامتی
دطو بالیده مو قوف په قیامت وی
همسری به ها له کاسه‌تا د لبانو
که شراب چیر ته شیرین لکه شربت وی
نه کاذکر مرأت وار له د ل نشینه
چه په‌خوله ئي مهر اینبی دحیرت وی
زمانه تر بخیل پست اهل کرم کا
ور بنکاره به‌یه سحاب د څرخ رفعت وی
په حلقه د ګرداب آب یا درر کاب دی
خس به‌څه رنګ په تدبیر دسکونت وی
د «شیدا» په‌کام دی و کاخو ګردشه
په‌آسمان کنبي که‌څه بوی دمروت وی

ښایسته‌په‌هر لباس لکه خورشید وی — که‌الوان‌ئي‌سرخ وزرد و یاسپیدوی
چه‌حیائي ستر ګی منع‌له شوخی کا — ته به وا یي غزا له د خطا قید و ی
هم‌طالع د کوا کب په‌سبزه زار کنبی — ددا نی له سرسبز یه نا امید و ی
د کباب په سوخته زړه تر حم‌و کړه — که‌په‌لاس‌کنبی‌دی‌ساغر لکه‌جمشیدوی
مد رسه دزړه خا لی بو یه له غیره — تا بکی به دي تکرار دعمرو زیدوی
چه بسته شی په ګلدام دتو رو زلفو
هغه‌زړه «شیدا» تیان په‌شان دصیدوی

نن چه ته د دې چمن با د صبا شــو ی
شنی د سر و ی غنچې ځکه په خندا شو ی

پــه بــهــار کــو ی نمو، دسنــبل تــخم
که گر ه دې په ر خسار دز لفو وا شوی

خو بی زیاته شی پخوا ب دشهلا ستر گو
توری ستر گی دې مخمل پهخواب زیبا شوی

چــه د انه چو ی پر یشا ن له خپله لا سه
په د ا خو ی د گــلو څا نگی بدنما شو ی

نن په د ا گــلــکو ن لبا س تا زه بها ر ه
ستاپه سرمی دې سو گــند وی تماشا شوی

چه مثال، پکښی مو نده شی ستا د ستر گو
د نر گس ستر گی لا هسلی تر هرچا شوی

«شیدا» تا د خپلی مینی راز پو شی کړه
پهپر ده کښی دنغمی په شان ر سو ا شو ي

پهسینه کښیراز دمینی جوشیدهوی    پهپرده کښی(۱) آوازوینی پوشیدهوی
در موزادائی هیڅ نشــوه معلو مــه    تل پــه ژ بــه د نر گس خر و شیده وی
هر گز نشته انتفاع له تنــگ دلانو    دغنچی شیشه بهځه رنــگ نوشیده وی
پهنسبت ئې تمام غر سنــگ دیده شو (۲)
دفرهاد اوښــکی به کلهخوشیده (۳) وی

---

(۱): په دیده کښی (اس)، (۲): سنــگ یده شو (اس)
(۳) خوشیده ــ فارسی لغت دوچېدونــکی پهمعنا اودخشــکیده مرادف (غیاثاللغات)

چه هجران ئی دسپند په شان دی سوی
التفات ئی وفغان ته ولی نه وی
سردمهری په اشنائی کښی هرگز مکړه
دسبا له باده زړه د غنچی چوی
وای ستړگه دلمر سوځی له اسمانه
مستقل دي په فتنه کښی دمردزړه وی
سیاهی ئی لکه دود د سوزان اور شي
په خمار کښی چه ئی چېری چشمان سره وی
ځکه شام زیبا ابرو د هلال وینی
چه له شوقه ئی گل جسم تور لیمه وی
وحباب ته سر فرو کا دریا بونه
گوری سپک په درنه ستر گه چه درانه وی
سر کشی می کا بریان دشمع خویو
که په طمع د کافور غوندی ساړه وی
خه پکار داشیا وضع بی محله
نافع گله چشم زخم ته رانجه وی
اختلاط کوه «شیدا» له تند خویانو
که گلگونی داتش په رنگ اوبه وی

چه مالك لکه آفتاب دسیم وزریږ — هر سبا ولی ولاړ د بل په دریږ
شفاعت می څوك دشمع په شان نه کا — ته خواهان لکه گل گیر زمادسریږ
لکه سیوره د زوال په تور لیمه ځه — که طالب د آفتاب روښنکولی دلبریږ

خپل دامن به کړي ګلګون دچاپه قتل — نن چه بیا لکه غنچه بسته کمر یې
دقیمې په دودمې زخم خوری زخمو نه — ته به څو زما له حا له بېخبر یې
دسیلاب په دوش روان لکه حباب شوې — اې زما کوره ترما آواره تر یې
ته په دار عنا قامت زېباسبز رنګه — بیا دچا داغ سر سبز صنو بر یې
که سر نکړې په سختۍ کښې فرو چاته — دهمت په ارتفاع لکه تور غر یې

«شیدا» ته هغه طوطی په هند د طبع
چه قانع دخپل کلام په ګل شکر یې

# څلوریځې

## (الف)

بهار دزوړ نوسرور پیدا کا — سیر و نه ځکه شاه و ګدا کا
اغ شبنې ئې درو می کله شبنم دی — ګلو نه څه رنګ دیره خندا کا

❀ ❀ ❀

هغه شاعر چه د مضمون غلا کا — کله پټیبز ی ځان بېهړ سوا کا
آواز چه خپږ ی د نی له فمه — نسبت ئې کله نی ته دا نا کا

❀ ❀ ❀

سخت رو ئی نفی د هر هنر کا — هنر بې قدر د هنرور کا
آسیا که تل ده پیا له ګردا نه — د ماغ به کله میکشان تر کا

❀ ❀ ❀

تاج د لوئی چه څوك په سر کا — د مرد مې سبق ازبر کا
فطرت دخورد و کلان اثر دی — حیا د بحر شوخی شرر کا

❀ ❀ ❀

ځان چه حریص و مطیع د نس کا ... د غنچې وصف پیدا ناکس کا
دل بسته ګی کا په دانه پوري ... آزادی ورکه دانه قفس کا

❀ ❀ ❀

اثر په زړ و نړ د شاکالی کا ... ځلی په تیره چه جنجالی کا
طرفه حلقه و ښا یسته ګوتی ... تیر و کمان شی میدان خالی کا

❀ ❀ ❀

چه تیر په زړه کښی د ښکار آهنګ کا ... پلنګ غزال و عقاب کلنګ کا
نجات ئې نشی د باز له جنګه ... د ګل له رخه پرواز که رنګ کا

❀ ❀ ❀

(د)

که هر څو ډیر شی شکر و شهد ... ځنی بهتر دی د شو د مهد
څه رنګ به راشی د راحت خواب ... و ووت له لاسه د طفلی مهد

❀ ❀ ❀

(ر)

شکایت واوره له ما د عمر ... که هر څو ښه ده بقا د عمر
چه پکښی لید شی غم د مینو ... سخته جفا شی وفا د عمر

❀ ❀ ❀

په اصطلاح کښی که و کړی غور ... ور ته معلوم شی د عشاق طور
جلوه د تا او ستا زما نه بولی ... طلوع د شمس و د قمر دور

❀ ❀ ❀

تل بەفلك و ی یـا ما ه و مهر | یا بە ئې کین وی یا بە ئې مهر
چەئې پرې نەښول پەدا جهان کښی | نـو شـپر وا ن و بـز ر جمهر

❀ ❀ ❀

کە فر ید و ن ئی کە منو چهر | یا دې پە کین دی گردون سپهر
کیسە پرزر کړه دسپاهی گوره | چەتوره ډال شی پە شان دمهر

❀ ❀ ❀

# (ع)

پە نقد وقت ئی خا طر د ی جمع | تا سر ه مـا ل و د نـفـع طمع
چە سیم وزر ئې لە اوره ووځی | فی الحال بەو مری غداره شمع

❀ ❀ ❀

ور کە د نـیا شە بـد ه ئې طمع | وا و ره لە ما نە کە لرې سمع
بیم ئی دسر شی پە شا ن د شمع | چەسیموزر کـاپە کور کښی جمع

❀ ❀ ❀

سیم وزر تول کړه پەشان دشمع | چە مسخر کړ ی جها ن دجمع
خا لی بە نە و ی لە د یره خلقە | طر یق د سعی آ ستا ن د طمع

❀ ❀ ❀

چەممسکان کـا سیم وزر جمع | پە صرف ئې ژا ړی مانند شمع
کەئې پەسیم وی کیسە لبر یزه | لە غیر ه کـا ندی دزرو طمع

❀ ❀ ❀

پەلبز قا نع شە خا طر کړه جمع | لر ې لە زړه کړه د هر و طمع
چە قناعت ئې پە سیم و نە کـړ | سر بر یده (١) شوه پەزرو شمع

❀ ❀ ❀

(١) گردن زده (پ)

# (م)

زما کریمه ! د تا بنده یم — که مې قبول کړې هر کور گنده یم
توفیق د شکر را ته عطا کړه — ترنعمتو نو دې شرمنده یم

❀ ❀ ❀

خزان ئې نشته هسې بهار لرم — زه ئې بلبل یم گل و گلزار لرم
خبر له غیره لکه حنا نه شوم — رنگ په خاطر کښې د خپل نگار لرم

❀ ❀ ❀

نه خراسان و خطا ختن غوادم — نه خیابان و نوا چمن غوادم
ژوندې صورت مې په مړه حساب شوی — لباس دغاړې ځیرې کفن غوادم

❀ ❀ ❀

سیل مې و کړ تر ډېره ولادم — جهان مې وغوښت، هنوز ئې غوادم
نظر دې نشته په دا دیار کښې — صورت دې دژادم، سیرت دې ژادم

❀ ❀ ❀

سیالي چه گل کړه تابان آفتاب هم — له دې جمال سره رخشان مهتاب هم
ورته ئې لاندې باندې تورو سپین شول — شام و سحر گوره بیا ئې عتاب هم

❀ ❀ ❀

که ئې قفس شته آب ودانه هم — همت پکار دی صیاد دانه هم
حباب چه بند کړ درو بلبل ته — محظوظ ئې نه شو په ترانه هم

❀ ❀ ❀

لەحب جاهە پەزړە کښې سوړیم　　دملنګی و کار تە جوړ یم

سرمې خوړلی دشپړین وروردی　　لە زندګی تر حلقە مو ړ یم

❁　❁　❁

پیدا چە ستر ګی لکە حباب کړم　　نظر وخانتە پەدا دریاب کړم

وو ینم هو نبړ ە تر دا منیە　　چەصورت وا ړە لەشرمەآب کړم

❁　❁　❁

# (و)

اې دخو دې پە مسند نا ستو　　د غفلتو نو پە بستر نما ستو

وګوری‌ءاوښی پەمژګان باندی　　دپښو خارونە خپژی پە زغاستو

❁　❁　❁

زجر ضر و ر دی ما یە فسا دو　　هر ګزومە وزیء دچوب لە یادو

را ستی پە زړە دکما ن ګور ې　　غوزتە ژی بو یە دکج نها دو

❁　❁　❁

وا ړ رە کە نە یې لە بېخبر و　　پە شمار، قطار یې د دا نشو رو

شعلە بادوژنی چە بلندی کا　　ا عتما د مکړه پە سبك سر و

❁　❁　❁

کە بهرە و ا خلې لە دې خبر و　　نعمت عطا کړ ە پە ښو تلبر و

فلك جهازدی (۱) ورتەساز کړی　　ګنی چەبند کړ تنګ دشکرو

❁　❁　❁

عزت پە کار دی‌اوس ذد لکشو　　ز نګی ادا کا د ښو مهو شو

کریم پە کار کښې دد یګ شوئی　　بدل دخوا ن دی پە نمك چشو

---

(۱) جواز (پ)

پوذم که غوز کړی پهدا ویـلو | په ګـلستان کښې شیدا بلبـلو
خجل کړه حسن دسا ده ر و یو | چه ز ر آ خر شو ه ادا د ګـلو

❀ ❀ ❀

چهنشوې تری په خوا ن دخپلو | قر با ن تـر هسی رسا منـګـلـو
طوع ئې نشته په کر هه خا صه | خندا کـه و شی پـه تخنو لــو

❀ ❀ ❀

پهځه شان تاو کړی زلفی سنبلو | عجب نما ی کـا ر خسارد ګـلو
ز ه پکښې حسن دخپل یار وینم | که دا بهار وی «شیدا» تر تلو

❀ ❀ ❀

دانـا ئې بو لی په ریشخندا نو | چه نـکـته نـاو ر ی د سخندا نو
ګر یه خند ه شی د صرا حیـ | خند ه ګریه شی واوریءخند ا نو

❀ ❀ ❀

فروتـنی کړیء سر بلندانــو | بهره یو نـه وړه خو د پسندا نو
تل خمیده وی بارو ری څانـګی | تواضع خوی کړه بهره مندا نو

❀ ❀ ❀

واوریء له مانه جان سپا را نو | چــه سر ګر وه د ی دد لبرا نو
توزیءلـکی ئې لهستر ګو و ختی | که بچړی(۱) راوړ سیه مارا نو

❀ ❀ ❀

فـکرو نهپر ږنبول پهز ړه یـکسو یو | د سیم وز ر و د ګمو لــو یو
دتن جـامه ئې هسیپـاره کړه | چه په ښه نه شوه د مرده شو یو

❀ ❀ ❀

---

(۱) بـڅر (پ)

که غاښ دې نه دی پوره شه د پیو　　　خلاص ئې له مهده هم له ګېیو
چه مخالفوی قول ئې له فعله　　　نږاد خره ده غپا د سپیو

❀ ❀ ❀

د عجم تاج به شاه عرب به　　　لو ئې دي راوړه له پښا که ربه
رانجه مې خاورې ستاد آستان شوی　　　په لیمه زغا ستای اوس تریشر به

❀ ❀ ❀

فراق ته وایه زماله با به　　　چه خود خبر یې له دې عذا به
زړه دي ونه سو په ما تر اوسه　　　جور به څو کړې خانه خرا به

❀ ❀ ❀

آب ودانه لړې شومه حبا به　　　نس دې خالی دی جوع کړبی تابه
تله ئې له تانه په تعجیل وینم　　　ولی ئې نه خورې خانه خرابه

❀ ❀ ❀

چه هند ته درومې پاشنه کو به　　　درسره واخله یو دوه دری چوبه
داه (۱) وغلام هي بې سره شوی　　　څه خو ئې سر کړه په توبه توبه

❀ ❀ ❀

پاسبان د نفس شه غوږ کړه وماته　　　له همرا هیات و تنهیاته
دانه چه بیا مومي صدف ته کوره　　　څانګونه وغوړوي پنجره کاماته

❀ ❀ ❀

راشه که ګورې ګلګون هواد ته　　　غبار ئې راغي ز بیا رخسار ته
چه خوبرو یانو مشکینو زلفو　　　کوز کړی سر دې ودي غبار ته

❀ ❀ ❀

---

(۱) داه ـ د کنیز او خدمتګار په معنا دی (د پښتو قاموس ـ ۲۶۷ مخ) .

نظر مې و کړ وامتياز ته — زما دفکر وتګ وتا زته
پر ده کړم سازه ناصري واوره — چه ګل خندا کازه ئې آوازته

❀ ❀ ❀

دبهارز پری تارا ووای بسنته(۱) — ګل نرګس . ز بیا سوسن ته
دشاخ پلاس کښې سوزن دخاردی — خلعت رغیږی دښت و چمن ته

❀ ❀ ❀

ویل به وکړم ودانش ور ته — چه غوز کړه خه خونکته پرورته
رزخ په مرګ کښې په خواب کښې وینم — بيخبری وه ووا یه چر ته

❀ ❀ ❀

بعدسبب دی غوز کړه و ما ته — چه خوردلیدوشی بزرګ وما ته
مهروه ګله دارنګ خوردان دی — لکه نمرد کا ګوره هر چاته

❀ ❀ ❀

همیشه ګورم و کار کشا ته — هغه دا نه یم غوز کړه وما ته
آسیا خرمن شی زمایه بخره — ګره چه یوسم چیری آسیا ته

❀ ❀ ❀

ووایه دارنګ هغه نسنا س ته — یعنی کج بحث اجهل الناس ته
ستاا عترا ض و تحسین دی لغو — پر ییږده خبره سخن شنا س ته

❀ ❀ ❀

سپینه بهنه شی دصورت وینځه — کښینه په سیند کښی مدام ئې وینځه
اثرئې نه ځی دبدذا تیه — که تر بیت شی غلام یا و ینځه

❀ ❀ ❀

ګرد باد به خه کړ رفعت پسیچه — مشت غبا ره تر هیچو هیچه
دغه پسیچ دې په ځا ن بلا شه — چه رها نه شوې له تاب وپیچه

❀ ❀ ❀

---

(۲) بسنت ، په هندی ژبه دپسرلی مو سم ته وایی .

سنبل لـه زلفو سره کـارخـه — چه‌تار په‌تـار شی شانه کـاسخه
تـاو بیزی ماته موجب ئې څه دې؟ — زیاتی ئې څوورم نبایسته‌مخه (١)



دنس په‌زیرمـه هر سـو نـوا ده — چـه زمـا نـه‌ئې تـل شنوا ده
جهـان یو بـاغ دی ډك په بلبلو — غرض دهر چـا بر گـ ونوا ده



پرو ت‌ئې په‌لبو دسرو پیزوا نده — چـه خلقه شـوه سره ارزا نده
څو ك‌ئې په‌خو له دنیښ لـه بیمه — په‌نوش لیده شی مچی نغلا نده



بیـکـسی واو ره تمـا م ائر ده — څوك به‌ئې خلاص‌شی له‌آه سرده
در چه یتیم شو صد ف ته گو ره — کـه‌زړه‌ئې سخت‌دی‌چوی له‌درده



زر به رسوا شي دمضمون دز ده! — جـا مه‌غمـازه د جـا مه دزده
کـلـه پټـیږ ی لـه مـبصـر ه — متـاع په‌بلخ کښی چه‌دقندزده



هراس ئې‌و کـړه له‌دې گز نده — په فصل خوښ دی‌څرخ له‌پیونده
منظوم ئې‌نه کـړ دستوریو نـثر — طبع ئې گـو ره دار نـگ بلنـده



چـه‌خبر نـه‌ده اصلا لـه قنـد ه — تـل شوه آزا ده سـر و بلنده
چه‌ئې‌شرین کـړ کـام ودهان‌هم — نیشکـر نه‌شو، ر هـا لـه بنـده



---

(١) دتاله‌مخه (اس)

اثر چو شئ ئې د مضامین ده ‏ ‏ ‏ خطه ئې ګوره چه ګل زمین ده
قلم «غني» (۱) ته ماني عطا کړ ‏ ‏ ‏ ګه په کشمیر کښې قطعه د چین ده

❀ ❀ ❀

نشو و نما چه دا نن د ګلو ده ‏ ‏ ‏ نوا په باغ کښې بیا د بلبلو ده
خوبان په رقص مطرب سرود کا ‏ ‏ ‏ زما په لاس کښې مینا د ملو ده

❀ ❀ ❀

هغه ځنازه جلوه مغروره ده ‏ ‏ ‏ مجازه نشوه پرده معذوره ده
هاله به څه و، که حجاب نه وی ‏ ‏ ‏ جهان ئې وران کړ جمله مستوره ده

❀ ❀ ❀

پریشانی لویه آزادګی ده ‏ ‏ ‏ د راحتونو آماده ګی ده
بندی که ګورې په جمعیت کښې ‏ ‏ ‏ سرور په بند کښې څه سادګی ده

❀ ❀ ❀

د تاله زلفو شانه ختلې ده ‏ ‏ ‏ هرچا لیدلې هرچا کتلې ده
هسې زیبا و پر مصفا ده ‏ ‏ ‏ د مار له حلقه ګویا وتلې ده

❀ ❀ ❀

په سنګ وچوب شي ونه فګاره ‏ ‏ ‏ همسر نګونه، ذلیله، خواره
راحت ئې ګوره سر بلندی هم ‏ ‏ ‏ چه طمع نه کا له برګ و باره

❀ ❀ ❀

د شهیدانو شمع مزاره ‏ ‏ ‏ نازک بدنه په مخ ګلذاره
مرګ ئې جدا کا مګر له تانه ‏ ‏ ‏ جمع د عشق ده شعله کرداره

❀ ❀ ❀

---

(۱) غني کشمیری د فارسي ژبې شاعر و، چه په ۱۰۷۹ ه کال وفات شوی دی
(دیوان غني کشمیری)

منا سبت لەرم زەلـە هرچا سره		پست یم لەپست سرە بالا بالأسره
پەمثال رنگـت یم د حنـا گـوره		زیب کرم لەدست سرەچوبیم لەپا سره

❀ ❀ ❀

بلندی خـکـه خـر گنده داره		چەطمـع نە کړي لە برگـ و باره
خوف ورجـادي پەخـا طرنشته		نـه لـه خزا نە نـه لـه بهـاره

❀ ❀ ❀

خەخو آگـاه شەلەخپلە کـاره		دم دي مر کـب دي واورەشهسوار •
زربه لەمخـکی سرەشي مخـکه		دبادپەدوش یـې مشت غبـا ره

❀ ❀ ❀

کورمی روښان کاپە کرم روی سره		بیا ئې ایری کاپخپل ننددخوی سره
مزاج ئې دوردي پـه تلون کښې		شیدا چه بیامو ندپه جستوجوی سره •

❀ ❀ ❀

نرگس دي کـار کـاپەخپل قا بوسرة		بـربـه رانشی لەدې جادو سره
چه ئې دعوه کـړه د همچشمیـه		ستر گې ئې نەسری شی لە آهوسره (۱)

❀ ❀ ❀

ورخ دبسنت ده وریځ ده گـو ره		وبـر یلی تە ځولـه رامپوره
گـو یا زعفران دی دازر دگلونه		چەبهره مندیونن لـه سرو ره

❀ ❀ ❀

قـدئې دمـل لـری و گـل تەگـوره		بابلی راغلـی بیا لور دلوره
دعشق پەاور ئی زړونه کباب دی		نمکـ پری پروت دی ددوی لەشوره

❀ ❀ ❀

---

(۱) دا مصرع پەدرزسرو نسخوکی هملاسی راغلی ده .

که ته ئې آوري وايم په زوره　　دعوې دسوز کړې وماته گوره
سوز په شعله ونې سوزنده نمر کښې　　ته غنو ده يې په سا يه سيوره

❀ ● ❀

دا استعداد دی دمحل ور وره !　　سيم وزر درازه لوئی ده گوره
زړه دسحر په وصول صاف شو　　دشام سينه شوه پر ې تـکه توره

❀ ❀ ●

خاته افروزه هـر دنــی اوره　　چراغ بهخه کړی و خاتته گوره
خوله دې نشته په حرارت کښې　　خاطر کړه صبر له سو په گوره

❀ ❀ ❀

که حريصان دی پر ما يه گوره　　استغنا ده کـا له خالی کوره
ته و در ياب ته عميق نظر کړه　　تهی پيا لهئې په لـب نسکوره

❀ ❀ ❀

لرې کړه دونه له خپله کوره　　نسل بهوران کړې مثال ئې گوره
اثر دخس دی په تنا سل کښې　　چه خا کستر شی پيدا له اوره

❀ ● ❀

په کورو کـلی پوری آتش کړه　　ترك خراسان، روم وحبش کړه
لکه ساحل شه د محيط بـحـر　　په ځای دقندوزهر لب چش کړه

❀ ❀ ❀

نعرې دزرکو په ککړه ککـړه　　زغ دهر څری چه پکړه پکړه
که تخت وتاج وی پسی ئې بر بېزده　　له کتهپره شپه په يکه کړه

❀ ● ❀

ابیت په‌طلب کښې واوره زنهار مکړه | دروم‌ه په‌لاره‌هر گز مدار مکړه
کمال که‌غواړې لکه میاشت خانه | کچکول په‌لاس کښې گرځه‌عار مکړه

❀ ❀ ❀

د آشنا یا نو په الم اف کړه | په‌لبز اندوه ئې ډېر تأسف کړه
که‌بې وفا دی‌رنگ دی ئې‌ورك شی | د آشنائې په بربت ئی (۱) یوتف کړه

❀ ❀ ❀

لوئې که‌مومې زنهار لوئې مکړه | چه‌مکافات شته‌جزنیکو ئی مکړه
وابنه‌په‌خوله کښې دې کهکشان نیسی | حال د آسمان‌وینی‌فتنه جوئی مکړه

❀ ❀ ❀

حیا ئی ډیره ستاله جمال کړه | جلوه دې ولی پری مثال کړه
گل وخزان دې بها نه کړی | پرخه ئی ما ته له انفعال کړه

❀ ❀ ❀

حلقه د دام می لکه گرداب‌زاوره | دانه مې گوره لکه‌حباب راوړه
ماهی‌آزاد گرځی مرغ آبی هم | نفع مې کومه‌په‌دا اسباب راوړه

❀ ❀ ❀

ترك دې دډ پر و معا ملو کړه | لاربه‌خون خواره نظر په ملو کړه
راغلی واورته دکور مېړمن‌شوې | رباط پر دی دی‌فکر دتلو کړه

❀ ❀ ❀

ته غوز وماته نبایسته‌یاره کړه | که‌شکایت کړی خوله‌هوښیاره کړه
گلوته با دۇ سحرو هلی | سیالی ئې ځکه ستاله رخساره کړه

❀ ❀ ❀

---

(۱) په ریش(پ)

وایه غافل تهغوز په خبری کړه      قربان تری لعل وښی مرغلری کړه
غنچه په باغ کښی د نرگس نه وینی      په زړه کښی ستر گی دی پردی ئی لری کړه

❀ ❀ ❀

لری له کسه سفله نا کسه      مزری بهخه کړی دسپی مګسه
وضع د شمع د آب و نار لری      صحبت ئی نه کا برار له خسه

❀ ❀ ❀

په د مړی ګران دی مهٔی رانسه      بهلی منا نس و بهلی منا نسه
معنی ئی نشته ښکولی صورت دی      نقشونه گوره هندیان پر ئ نسه

❀ ❀ ❀

چه مقابل ئی دمخ آفتاب شه      کم ئی طاقت ومفقود ئی تاب شه
چه خاص و عام ئی ابرو باران بولی      دائی حجاب دی له شرمه آب شه

❀ ❀ ❀

چه ئی ترستر گو شیرین شفت شه      نبات لهشرمه گوره شربت شه
صورت دچین ؤ ور تـه کـتلی      چهسر تر پایه رنگ دحیرت شه

❀ ❀ ❀

آسمان چه دار نـگ سفله نوازشه      تو تی می ځکه سخن پردازشه
ناست دفولادو په بیضه زاغ دی      حیران په کار کښی آئینهسازشه

❀ ❀ ❀

فلك خهخیزدی پهخیال دجنگ شه      سبزه میناده په مثال سنگ شه
چه ئی عادت کړی ضرر شی نفع      سپایه پهزهرو یعنی نهنـگ شـه

❀ ❀ ❀

دا هسی حسن خو دیده نشه — آ فت د دل ود دیده نشه
رنگ د گلو نو بی رنگه شوخ دی — چه ستا له شرمه چکیده نشه

❀ ❀ ❀

زور شوم مینه غم دې زور نه شه — خس که ایری شه تاوئې سور نه شه
زه ئې بچه(١) کرم دوچی خانگی — هنوز په وینو زما مور نه شه

❀ ❀ ❀

خون ریخته یم لکه شمع تل بی تیغه — شه عبث تکلیف په تیغ زدی در یغه در یغه
سر کنبی لکه شعله په مشت خس کری — مگر هیڅ نه یې خبر له سپل و میغه

❀ ❀ ❀

چه یو ساعت شی په فکر غرقه — بلندهٔ طبعه نه وی بې خرقه
رنجک دا بر نشتهٔ دار وهم — برق اندازی کا تر غرب وشرقه

❀ ❀ ❀

رنگ د حناوباده له تاکه — ستر گه ئې سره وپنجه بیبا که
دوار شعله وسوزان اخگر دی — ځکه سوخته شوې خس وخاشا که

❀ ❀ ❀

گوښه دې پر ښو محروم ئی ځکه — له قرص نا نه هم له کنډ که
شوه له قفسه غنچه بېر و نه — په هغه دم ئې دا نه شوه ور که

❀ ❀ ❀

چین دا برو ئې گنهز بر که — د فولاد تو ره په جوهر د که
کور نژدې شې دتا په سر زو — سر به دې نه وی په تن بېشکه

❀ ❀ ❀

چه وی سر توره پرته په مز که — شپه نو رانی شی په سحر ځکه
خشوع نشان دی دنیک بختیه — که دې روزی شی «شیدا» ختکه

❀ ❀ ❀

---

(١) بچه د وني وچه خانګه .

اهل تمکین دی په مثال مځکه — تر مخ ئې تیر شی لکه بادسپکه
نوم دلو ئې در پوري مشه — په صورت لوئې په خوی هلکه

❀ ❀ ❀

په کور کښې ریږدی ترسانه چرګه — ضیغم غریبزی په ورانه درګه
کښین مزری ئې حیف و نمرته — له تانئی سوځی آسما نه ستر ګه

❀ ❀ ❀

کله وفاده په خاطر سنګه! — چه خوب دې نشی بې له پالنګه
مین دې پروت دی په تورو خاورو — شکولې څهره ئې په وینو رنګه

❀ ❀ ❀

کله خبر یم له خپله حاله — سوی پتنګ یم شعله خصاله
یادبه مې څه رنګ وقت دوصال وی — چه زیست می نه وُ پس له وصاله

❀ ❀ ❀

صاحب سریره بلندا قباله! — غافل په حال شوې له استقباله
در ته ضروردی د تا په ستر ګو — ترس له زواله بیم له وباله

❀ ❀ ❀

طمع آبرو کا همه زائله — داخطره کره اری له دله
زره چه ګوری د آفتاب خوان ته — څه رنګ شوه سپکه وازه عاقله

❀ ❀ ❀

چه تهی دست شی کریم عاقله! — خالی ئې نه وی کور له سائله
تهی دستی ئې لکه حباب هسی — حجاب شی واوره له دانا دله

❀ ❀ ❀

شعله چه وینی د آتش بله — شمع ژړا کا د لباس ځله
شعله چه وری د تا په سر زو — او ښکه ئې نه کا په غم کښې تله

❀ ❀ ❀

نکته می واوره بس مد لله — نقصان بږی دی له مکمله

که ئې دی اوښې یادسیند غاړه — نهرونه کېنې و خېژی کله

❀ ❀ ❀

نن مې په باغ کښې غنچه لید له — پهدا تقریر وه ورته بلبله

شکوه له چا کړی دا سیر ید — گلدام دې خپل دی، دانه دې خپله

❀ ❀ ❀

څه به ئې وایم نور له کلامه — آغاز ئې نه دی کم له انجامه

رمدغزال شو پیدا له کومه — «ناصرعلي» کړه شوخي تمامه(۱)

❀ ❀ ❀

چه کناره څی زر که له دامه — صیاد ئې بولی هرزه خرامه

وهرهنر ته محل ضرور دی — آورم داهسی له خاص و عامه

❀ ❀ ❀

شرمیږی گله له خپله نامه — نادیده برق آواره خامه

یوه دانه ده خرمن خو نه دی — را تله دې څهٔ زما تر دامه

❀ ❀ ❀

پهڅیر حیات کښې بنې آدمه! — د چا نجات شی له ډیره غمه؟

ستو کی ئې و بنې پهژړا سپینې — پیری څه ملا کړه د آسمان خمه

❀ ❀ ❀

سپل رسیږی تر لو یه یمه — څهېې داو ښکو ناچیزه نمه

پښې دې شی دواړه رنې تنها کې — تر بڼو واخلې یو دوه قدمه

❀ ❀ ❀

---

(۱) ناصر علی د هند په فارسی شاعرانو کی یو پوخ شاعر تیر شوی دی.

چشمان دې سره دی په مثل صنمه　　مژگان دې تورې دی له توره ئمه
مثال ئې راغی په زړه له همه　　دسته د گل وسنبل بهمه

❀ ❀ ❀

که مسخر کړې دوه سو جهانه　　کله به مور شې وز به انسانه
که ئې خالی کړه غله دانو نه　　آسیا هنوز ده کاسه گردانه

❀ ❀ ❀

له گلستانه بیا تر آشیانه　　بلبل سرود کا غنچه خندانه
په دا پسر لی کښې منی د گلو　　تا کړه په غاړه زما چا نانه

❀ ❀ ❀

گلو را یاد کړل تیر بهارونه　　هغه دستې وز بیا هارونه
وری می بی درده له دی چمنه　　په ما ئې و کړه څه پر هارونه

❀ ❀ ❀

کلی هغه دی غرونه راغونه　　آب روان و سبزه باغونه
ور څخنی ولیښ آشنا و کړی　　هجران ئې را کړه په زړه داغونه

❀ ❀ ❀

نه ئې گزند شته نه گزندونه　　آزاد گی و هزار خوندونه
په نغمه نی شو له دې طربه　　خو چه ئې واشول دېښو بندونه

❀ ● ❀

طول دمل څه کړې یالوی کارونه　　شمع گانذار اری هزار تارونه
مهلت په کار کښې داهو مره نه مومی　　چه جوړ کا خانته رعنا هارونه

❀ ❀ ❀

څېش ومنال و ملك وما لو نه　　زلف وعارض و مشكين خالونه
چه فكرو كرم دتا په ستر كو　　وهمو كمان دى او يا خيا لو نه

❀　❀　❀

مكره په زرو اهو مره مينه　　سروري غم اري زما قرينه
راشه كه كورې جبين دكلو　　كه شكفته وي نه وي بى چينه

❀　❀　❀

د شهيدا نو شمع بالينه　　نا زك بدن په مخ نسرينه
مركى مى جدا كا مكر له تانه　　جمع د عشق ده شعله آئينه

❀　❀　❀

چه له آشيانه زر كه بدر نهوه　　له كو هستانه د بل پهدر نهوه
وربانده دى دتل وه دخندا صبحه　　دغر يبى په شام خبر نه وه

❀　❀　❀

خاطرملال كا طبع ستو هه　　كنا ره او سه له دي كرو هه
رنكين مضمون چه لولي جاهل ته　　(١) ته ساده دل بې زمايه پوهه

❀　❀　❀

چه بهره نه وى د چاله چا هه　　له سيم وزرو له جوى و چا هه
څه بهٔې كم كړې ومانهوايه　　په خصو مت كښي بخت سيا هه

❀　❀　❀

حركت نه كړې لهځپله ځا يه　　لهما هى زده كره طاب خود رايه
كهڅكلى مات شى هزارخارونه　　په سينه څكېږه بى دست ويا يه

❀　❀　❀

---

(١) چه وجاهل ته رنكين مضمون لولى (پ)

مخ د خو با نوجلوه پیر ا بو یه — تل نما یان ومحفل آ را بـو یـه
لکه « شیدا »دی مداح دښکلو — ور ته خوشخوان غـزل سرا بو یه



پهٔمرا عات کښې فرق دعا لم بو یه — فکر په کـار کښې دلو یو کم بو یه
چه یو شناوه کـادوهم نمایه کـا — نهنـگ ته یم بو یه گل ته شبنم بو یه



د کـار اسباب تههنرمندان بو یه — مثال ئې وایم خو شخندان بو یه
چینې کههر ثو دموی قلم لری — بیا ئې نـگار ته نقشبندا ن بو یه

# (ی)

سختې چهراشې ډیر خصومت ځی — د مخـا لفو مخـا لفـت ځی
پهشان د کـوه ئې سرو تیغ یو شی — گـمان لهمیانه دغیر یت ځی



کـهراشی هرځو دبهار ورځی — اوری په باغ و پهراغ ور پځی
نهبه شیبو شی نهبه نسرین شی — گل دسپلمیړدی که گل د بځی(١)



قلبه ئې نشتـه پټیږد کـځی — اسرې دچا کـا یا ډېری هځی
گـبینه گـوره پهویرانه کښې — نبیړ ئې نشوه خا لی له پځی



زیره دی سپینه پهشان دپوځی(٢) — خرام دې نشته کـوې خرپوځی

---

(١) یځی (پ) (٢) پوځی یو قسم وږی ده.

بو يه صحر اته دراز گامونه — طي به ئي نكړي په لوځي يوځي

❀ ❀ ❀

شيشه مستا نواوس له محفله ځي — لري منزل ته له دي منزله ځي

چه لاس ئي تش دی له حاصلاته — ځكه له بزمه شكسته دله ځي

❀ ❀ ❀

هغه ياران چه اهل وفا دی — لكه عصا وصا حب وفادی

په اعانت تل يو د بل دی — كه استاده دی كه ره پيمادی

❀ ❀ ❀

له مانه واوره فصل الخطاب دی — كله مهتاب و كله آفتاب دی

ليچې دی دوا ړه د آسمان بر ښې — اهل همت ئي په پيچ و تاب دی

❀ ❀ ❀

هيو تاروئي زيبا صورت دی — صحراد «روه» چه تمام ندرت دی

گوري وخان ته په تكراروايي — يا كه سبحانه! دا قدرت دی

❀ ❀ ❀

دمرد كارونه په بنه كرتوت دی (١) — نه چه په ريش و يا په بروت دی

پرده دچا شوه پي با ندي پټه — تنستي ئي د ی دعنكبوت دي

❀ ❀ ❀

فلك كه هرڅو پيروفرتوت دی — خوی ئی دطفل بدئي كرتوت (٢) دی

تجويز توتی ته د ترنج كاندی — شر ين ثمرئي په باغ كښي توت دی

❀ ❀ ❀

كله سبا دی باد مراد دی — چه ليد لی افضل آباد دی

---

(١) كرتوت، اردو كلمه ده اود كردار په معنا راغلی دی (فيروز اللغات)

(٢) سوی كرتوت (پ)

راته ئې ووې دحال پهژ بــه — تازه دګل، سرو، شمشاد دی

❀ ❀ ❀

طرفه صحرا وښه مرغزار دی — موسم دسیل، هنګام دښکار دی

لهخوبه پـا څه غنوده یـاره! — زیبا ګلو نـه. تازه بهار دی

❀ ❀ ❀

خواجه پهحال کښې دکروفر دی — پهقیل وقال کښې دسیم وزر دی

کـه ئې مقام شو دګور په غاړه — هنوز پهخیال کښې د بام ودر دی

❀ ❀ ❀

سوختـګان کلهراضی پهشور دی — له کـوره تښتې خواهان دګور دی

راشه کـه ګـورې سوی داغــونه — زړونهئې څهرنګ لهمالګې تور دی

❀ ❀ ❀

«بیدل» استاذو(۱)متین ئې طرز دی — لـکهپهطوس کښېد کشاورز دی

دتا لــه طبـع بهـا ر شــو کــته — در نـــګینو ســلیقــه ور ز دی

❀ ❀ ❀

چهدزلفوسیهمار پهرخسارپرېږدی — دعرق ددانودرله بیمهر ېږدی

ګـو باصبح دقیامتشوهسیشور دی — چهخپل تېغ لـکهخورشیدپهڅرخ کښېږدی

❀ ❀ ❀

هلالئې ګــوره پهمثال نیشدی — نمرئې پهسوز کښې ترزهروبیشدی

آسما ن لـــرم دیزمـــا پهپو هه — چه له ایذا ئې عا لم دلریش دی

❀ ❀ ❀

---

(۱) استاد بیدل دفارسی ژبی دیرپوخاونازك خیاله شاعرؤ، لـکهچه دپښتوځینیاوسنی ادباء کـاظمخان شیداته دپښتو ژبی بیدل وایی.

په بدی حکه دخرخ شیوه عرطی     دنـا مردی نام ئې موضوع دی
دانه ئې نکړه دستوری سبزه     په سرسبزیه دخپل مزروع دی

❀ ❀ ❀

دحضرت کله هو نبره اوصاف دی     چه ادا کړی چېر ته وصاف دی
قدم ئې سر کړ بلند دمز کې     معنی دا هسی د کوه قاف دی

❀ ❀ ❀

کودن په مثل ساده ورق دی     نه د مکتب او نه د سبق دی
وریوري خاندی په شان دصبح     رنګین کلام مې ګلګون شفق دی

❀ ❀ ❀

ډیر چراغان دی نه یو چراغ دی     تمیز ورك شوی دباغ وراغ دی
تیاره په بیخ کښې دډیوې وینم     که نه یو هیبزم دلا له داغ دی

❀ ❀ ❀

شیرین لبان مې دشو خو تنګ دی     که مصری د توري په وینو رنګ دی
په هرجانب دی آثار د قتل     دعا شقا نو فرقې څورنګ دی

❀ ❀ ❀

خزان راغلی په خیال دجنګ دی     ساعت په ګل ؤ، په غنچه تنګ دی
خانه نشین شه ز هوا بهاره     په دامیدان کښې شکست درنګ دی

❀ ❀ ❀

چه خار ئې بولی مګر خدنګ دی     یادې خوړلی په زړه تفنګ دی
چه ژړا نکړې دچمن ګله!     رخسار دې ولې په وینو رنګ دی

❀ ❀ ❀

عجب سحرو یکښې درنګ درنګ دی     اثر مې شوی په زړه داد رنګ دی
دمالګې ګل ئې شګفته تر کړ     بادئې راغلی دباغ په درنګ دی

❀ ❀ ❀

که په گردش کښې د آسیا پل دی — دلا ندې پل ئې اختتی پل دی
روزی وررسی په یوه آن کښې — که یو په سعی بل ئې معطل دی

❀ ❀ ❀

د نازك دلو اطوار مشکل دی — په دا به پوه شی څوك چه عاقل دی
مرهم ئې نشته دو ختن ئې هم لا — که زخمی شوی د مینا دل دی

❀ ❀ ❀

شو نمې د جام و چار دمــل دی — ستر گې دې ځکه په تغافل دی
څه خو بیدار شه بدمسته یاره! — گل و بلبل و طرفه سنبل دی

❀ ❀ ❀

طرفه بهــار د بــاغ ارم دی — همه سېراب، تــازه خرم دی
گویا هلال دی په ډېر شفق کښې — شاخ چه د گلو په افراط خم دی

❀ ❀ ❀

لــکــه پرولی د شمــع مــوم دی — هم ئې له سوزه پتنــگ محروم دی
خس و خاشاك به د سپند څه کـا — هغه شعله ده چه برق ئې نوم دی

❀ ❀ ❀

مثــل ئې واوره لــه ما عدیم دی — په اختصاص ئې ځکه تسلیم دی
که سر د طور وی معنی بلنــده — زمایه پوهه «طالب کلیم دی (۱)

❀ ❀ ❀

نظر دې هر څوك په داخپل داب کاندې — چه باد دستی لکه حباب کاندې
کا سه در سته خالی شی پاته — بېزار له ځانه سیل و دریاب کاندې

❀ ❀ ❀

---

(۱) کلیم د فارسی مشهور شاعر دی چه په ۱۰٦۱ هـ کال وفات شوی دی.

کـه سرداران دی یا تاجداران دی — کـه ئې گـنجونه بس فراوان دی
زیست ئې محال دی چه شی یې مځکې — پائی په خاورو گـویا ماران دی

❀ ❀ ❀

غوزدې وما ته سخن شناس کاندې — گویا حباب دی چه خالی لاس کاندې
رواج ترې یا ته شی په اضطرار کښې — په بر ودت کښې نوې لباس کاندې

❀ ❀ ❀

سیل آخستې باز دې دهان دی — ځان دې هېر کـړی غم دې دنان دی
خس و خاشاك دې و تناره تـــه — تهٔغـلغله شوې هنـو ز روان دی

❀ ❀ ❀

چادی لید لی عاشق دتاغو ندې — چه خو دار ای رعنا زیبا غوندې
هسې خاکسار شه چه نماو کاندی — دوا ره پهلو دې د نقش پاغو ندې

❀ ❀ ❀

غوز کړه په دارنگ فصل الخطاب باندې — نظر په باز کړه هم په عقاب باندی
په پرو بـال کـا بـازی کو تـــره — واهه شی صید په دا اسباب با نـدې

❀ ❀ ❀

ولاړ په کور کښې خونی بپلتون دی — تیغ ئې په ویـنو تمام گـلـگون دی
څه خو ترې و کړ ئې د حال پو ښتنه — په څه ئې کړی «دشیدا» خون دی

❀ ❀ ❀

له دې انځوره چه څوك بېرون دی — لار ئې ده صاف همو ار ئې یون دی
هر ځای به پرو توی پهٔشان د مزی — همه دلدل دی در ست شخید ن دی

❀ ❀ ❀

سوخته خاطر مې زار تر سپنده دی — خسته صورت مې ستړی بې بنده دی
زه هسی نه وایم چه فراق وو ژلم — حیات خوشته دی ولې بې خونده دی



کهدې آداده یادې کړه وره دی — همه زیبا ودز ړه پـه وره دی
په تیوه ونـه چـه خو شنما لـري — ولی ئې خنبې ز ما پـه زړه دی



غره بېځا یه د هند سبنرا نې دی — غنج وادا اری کـه داستا نـې دی
چـه د لبری کـا بـې تـکـلفه — «دروه» پهملك کښې ساده خوبانې دی



نظر د ستر گـو دې اثر کړی دی — عینك له کومه نظر راوړی دی
حس ئې دنـادی حرکـت همـلا — زنده چه گورم په مثال مړی دی



دهند پهملك کښې عجبه سکانهی دی(۱) — نازو ادا اری کـله نا ځانهی دی
چهئې نظر کړې وطر فـه حسن ته — شپهنو بهار کښې در ېحان پانهی دی



وایه په څه کړې نعرې چغا رې — په دام دز لفو کـه گـرفـتا رې
مثال ئې گـوره په نیشـکر کښې — په بند کښې خوندی دشېرین کـارې



آسمانه! گـر ځې ولې بې لارې — بدی کـرداردی ورانی دې چارې
حظ(۲) د کېکانو یوسی کوتره — بـا زوشاهین و گـنده مردا رې

(۱) لکه پههند کښې ښایسته سکانهی دی(ح)
(۲) خط د کبکانو (اس)

په دا امید کا تو تی خبر ي — چه ئي تر خوابي شی خوږي شکري
له خپله شوقه گو يائي کاندی — طمع او شوق دی سره دېر اري

❀ ❀ ❀

کاظم خا

چه خلق ئي نه وی اوسه تري لری — حلوائي مه خوره که زهر نغري
ژبه ئي گوره دا ور لمبه ده — ځکه تري خېژي سوی خبري

❀ ❀ ❀

که ور ته ځير شی په شان دګړی — نظر انداز کړي د سپر پنځری
زر کي سبزانی خوش خرامانی — همه گلفام دی « دروه » تنځری

❀ ❀ ❀

مردان هغه دی چه شرم و ننگ لری — کشاده چنگ ورائی فرهنگ لری
په بزم ور زم باندي چه راشی — د تو تی ژبه زړه د پلنگ لری

❀ ❀ ❀

نامرد که هر څو رفيع مکان لری — زر لکه شمس مطيع جهان لری
که هيڅ نشان ئي د تأنيت نشته — دمؤنث سماعی شان لری

❀ ❀ ❀

زاری مي خدايه روز و شب آوری — که مې نصيب کړي ديثرب خاوري
درست ئي کباب کړه په اور د مينې — خراب خاطر مې خنک تر واوري

❀ ❀ ❀

ور ته څه وائی دا تو ري خاو ري — هزار افسوس دی چه ته يې ناوري
عجب مثل دی دا نا ويلی — نمر د تموز و عمر د واوري

❀ ❀ ❀

خط به ئي راوړی خو بېړ نو ري — څو ساده رو وی تر هغه بو ري
گل بېخا رو حلوا بې دوده — لب رخساری ديار که گوري

❀ ❀ ❀

حندارادرومی په خان و بیګ پورې — په ملک و مال و په خوان و دیګ پورې
شیشه ساعت دی‌مینه په تلو نیو کا — زړونه ئې بندی په روان ریګ پورې

❀ ❀ ❀

لـه هـا نـه وا وره ثنـا د تو ر ی — ور کـه ده ګـو ره بـلا د تـو ری
سر ه ئې جمع آب و شعله کـړه — څه سیا ست د ی « شیدا » د تـو ری

❀ ❀ ❀

چه په شا درومی کـه ورته ګورې — آ برو ئې خا ندې په هـلال پو رې
مژ ګـان ئې ګـوری کـلمه سم چا نه — چه په کـجل کـا چشما نې تورې

❀ ❀ ❀

ستا انتظار د ی تل په هر لـو ری — ودې آستـان ته خـلا یق ګـو ری
آسمـان له‌شـو قـه شـاه رسـلـه! — په کـا ته‌سپین کـړه د ستر ګـو توری

❀ ● ❀

په‌شان دمځـکی ځان څه کمتر ګورې — کم‌وی که‌لوی‌وی ترځان ئې بر ګورې
کـه‌می شی‌خاورې په تقـا بل کښې — مرد د آسمان ته بیا برا بر ګـو رې

❀ ❀ ❀

سرور دغیر، یائې ملال څه کـړې؟ — تدبیر دځان کوه دنوروحال څه کړې
محنت را حت ئې و تـاته نـه رسـی — آرام ددښتې رم د غز ال څه کـړې

❀ ❀ ❀

قرار په‌څه کـړې دتلو اسباب راوړې — دحباب مثل ئې چه باد و آب راوړې
عصا دموج دې ده په‌لاس کښـې — وخپل قیام ته له کـو مه تاب راوړې

❀ ❀ ❀

نشتهٔ په هند کښې دغرو نوډرې — نه‌شر بې‌غو ښې په‌وازدو غرږې
خس و خاشاك وډال چپا تې دی — سلو نې پا پر سـکو نې برې

❀ ❀ ❀

وایه په څه کړې سامان د پـرې — حرکت نه کا صورت دمړی
راوا خله توره ناتر سـه یاره — له‌ژوا کـه‌سپردی په‌زړونو سترې

❀ ❀ ❀

صرف ئې په کام کړه سیم وزرڅه کړې؟ — خارئې تر نام کړه تاج و مر څه کړې؟
کـله‌په خاورو دخپل حریف کړه — شپو ه په‌تیـغ و په سپر څه کـړې !؟

❀ ❀ ❀

تر هیچا نه‌دی هغه ستر ګې کـوزې — چه‌ئې څوك تول کادخوان خڅوزی (١)
تعجب نـه دی له‌دې اشعـاره — کـه‌ئې مـطیع شی څوزی ماڅوزی

❀ ❀ ❀

ستا په لباس کښې مستسقی‌سپېزې — په‌هرساعت وې دوینـو تـبزې
تعلیم ترې اخلی دخونخواره — پر نده مـا شی جهنـده ورزې

❀ ❀ ❀

ګـوره په باغ کښې‌دراموپوروزی — نـه دی دو نو تر یـانهولـبزی
دائې امثال‌دی په‌کـو هستان کښې — تر بلا توري څو نخوارې یبزې

❀ ❀ ❀

همیشه ژاړم په تیر صحبت پسې — په هغـه مهر پـه محبت پسـې
لـکه شیشه یم د ساعت ګـر ده — زړه‌می‌دوه‌نیم‌شو په‌تیر ساعت پسی

---

(١) خڅوزی میدګی نان د(پښتو قاموس ٤٢١ (مخ)

پریشان یې ولې په ډیر دولت پسې | په ډیر خدمو شان وشوکت پسې
زنهار په طور دغنچې مشه | چه زړه ئې چوي په جمعیت پسې

❀ ❀ ❀

عیان دحال شه په شیخ وشاب هسې | چه باد بدست ځی لکه حباب هسې
محروم له فیضه سر آماسې کړې | فیاض درخځه لکه دریا بهسې

❀ ❀ ❀

گلونه و کړه د «روه» پلوسې | که دا پیام مې نسیمه یوسې
خوش بو یه تاده دوطن سیمه | په دا دعا یم چه تازه اوسې

❀ ❀ ❀

❀

چه صاف جبین دې جلوه پیراشی | دوا یه ابرو دې عالم آراشی
حیران به ناستوی ستا په اوصاف کښې | که بدر چاچ وهلا لی راشی

❀ ❀ ❀

هغه آزاد شی چه بېنوا شی | له سخته قیده فی الحال رها شی
خو چه دا نه شی دغنچې ورکه | دقفس ورئې ور سره واشی (١)

❀ ❀ ❀

چه په ډیر عیب خوك مبتلا شی | له لېږه عیبه اکثر رها شی
وینځې ئې نه وی په صورت باندې | چه له حبشه مریو نه راشی

❀ ❀ ❀

غالب بضعف په تنو مند شی | یلان اسیر کا چه زه کمند شی
موجونه خس کا ترسینه لاندې | بحرد شعر په کاغذ بند شی

❀ ❀ ❀

---

(١) قفس ئې گوره هغه دم واشی (١)

په ځان مینه که تري وېزار شي　　خبر به هله په دا اسرار شي

تمام که نیست شي په شان د شمعې　　خلاص به له قیدهٔ د ځپل زنار شي

❁ ❁ ❁

چه مثال ئې نه وي که نامور شي　　مثال ئې وایم نامې ګهر شي

یوه قطره ئې د آب په جام کښې　　کام به پرې څه رنګ د تشنه تر شي

❁ ❁ ❁

مهر که هر څو دچا دلسوز شي　　اثر ئې کله په سیاه روز شي

بخت دې چه و کا مدد له همه　　په دا ظلمت کښې چراغ افروز شي

❁ ❁ ❁

چه عنایت ئې شامل د کس شي　　دیړې سیوره با ندې اطلس شي

غنچه د باغ ئې تل شګفته وي　　کو که د صبح ضیق النفس شي

❁ ❁ ❁

چه ورك ئې حرص و هوا هوس شي　　د غنچې وصف پیدا د کس شي

خاطر کا جمع له جست وجو یه　　یو ه دا نه ئې بسته قفس شي

❁ ❁ ❁

چه لك په زړه کښې د عشق ناوك شي　　صورت له دردہ تمامي ډك شي

په ځای د خون ئې ناله جوشش کا　　رګ و نشتر ئې تار وز خمك شي

❁ ❁ ❁

اور په صورت کښې د شمع بل شي　　چه سیم و زر ئې د کیسې تل شي

زر په تا و ځېږي' په تاور غیبږي　　وایه دا هسې ضرب المثل شي

❁ ❁ ❁

دهنر اهل اختته پـه غـم شـي        په هنر وا وره نیودم پەدم شـی
سوزن ته گوره له تیز گـامیه        پەدو چه درو می شخ ئې قدم شی

❀ ❀ ❀

درنبت ور کیبزی آبرو کم شـی        چـه صحبت گرم دسپك عالم شی
مځکه غبار شی دبـاد لـه لاسه        پاته ئې کـله پەمخ کښی نم شی

❀ ❀ ❀

کـەلبز پەسیر دخپل عالم شـې        خوښ بەله بوده پەخپل عدم شی
سر کښی خو ی دی دآ تشیانو        خاورې‌شه خاورې گوندې آدم‌شی

❀ ❀ ❀

رنځور دمینی خا نه ویر ان شی        ورك ئې طاقت و تاب وتوان شی
پر یوزی له ضعفه په شا ن دمهر        څېره ئې زر ده تر ز عفران شـی

❀ ❀ ❀

هغه قانع‌دی چەڅوك بې‌نان شی        دحرص کـارونه لەذولخوان شی
له ځایه کله وزې آسیا خو ځی        مره ترحلقه کـا سه گردان شی

❀ ❀ ❀

تنهاچه نان‌خوری تمامی نان‌شی        مهتا ب ته گوره چه در عیان شی
نـظر پـه مهرو پـه ذره و کړه        بقاد نان ده چەډیر همخوان شی

❀ ❀ ❀

بز م لبریز دی په سرد جو شیه        گر می شوه ور گه دمی نـوشیه
آسما ن همیش کـا ځما له حاله        په وا زو ستر گو چشم پـو شیه

❀ ❀ ❀

هالەئې گوره چەصاف پەرلوشی زیما پە لعل ویە بنە او لـو شی
ور بل دې وکـا جا د و گر ی ز ونە دډیرو خوبا پـە تلو شـی



پەفن دشعر کەخوك آگـاه شی پەدا کمال «دصائب» گواه شی(۱)
جو دت ئې گو ره دصـا فطبع غرونەعجب‌دی کە سنـگ راه شی



باد کە مې یوسی لە کوره څەشی یاتە بې خاور ولە ما هیڅ نشـی
پە هوا نـا څم غبا ر پـە شـا نـی اعه ال کەداوی‌هرځای‌مو ندە شی



رو ښا نە طبعە چە مکدره شـی دسخن طرحە واورە دیـگرە شی
عقیق‌نـگین چەانشار نـگینە کـا پەتکدر کښې څەسادە تره شـی



دگـل پەطور چەخندە رویە شی ایمن‌لە خصمه، لە کینە جو یە شی
بادو باران ئې شمع روشن کـا مرجع دخلقو لە خلق و خو یە شی



نـظـر دمـهـرو ذرې تـه وشـی چەگرم رووی تنـها بـه نشـی
مهتاب چەوضع دسردمهرۍ کړه پەخوان ئې کـلە مـگس لیدە شی



ورځې تە گوره چە گرم رویـه شـی پەدرست‌جهان کښې څەشانې لویەشی
وره شی‌څەرنـگ‌پەسردمهرۍ کښې نتیـجـه یـا ب لـه خپلە خـو یە شـی

---

(۱) مـیـرزا صائـب اصفهانی د فارسی مشهـور شاعـردی، پەتبریز کی زیږیدلی اوپه ۱۰۸۰ ﻫ کـال پەاصفهان کښې‌وفات‌شوی دی. (شعرالعجم- ۳ جلد)

خاوري په باد کښېږي هر گوره سپکې شي | هم پرېشاني په هر لور ور کې شي
چه منعقد کا صحبت له آبه | تمکين ئې گوره حکم دمځکې شي

❀ ❀ ❀

غوره ئې وکړه په مقالات کښې | هم ئې په طور، هم په حالات کښې
«قاسم» (۱) چه غوره ديوانگي کړه | همتا ئې نشته په خيالات کښې
تقليد نمر کړه په کار وبار کښې | چه سر بلند ئې تل په روز گار کښې
لاس ئې تور نشه په خپلو زرو | وار ئې صرف کړه دبل په کار کښې

❀ ❀ ❀

که نظر وکړي په داروز گار کښې | انتفا نشته په کار و بار کښې
طلب ئې سوخت شي په شان دستر گو | ابلق چه داغ کا په داسر کار کښې

❀ ❀ ❀

مجازي کاخ کړی تل په هراس کښې | ثبات ئې نشته په هيڅ اساس کښې
طاق ئې جوړ نه کړ يکښې له بيمه | فلك چه گرځي بنيښه په لاس کښې

❀ ❀ ❀

ما چه زړه پرېوست په تامل کښې | نظر مې وکړ بيا په آمل کښې
«طالبا» (۲) حسن معنی ته ور کړ | بلبل ئې وينی مگر په گل کښې

❀ ❀ ❀

پيداشه مهر سکه په آسمان کښې | چه زړه دي روغ دی په داجهان کښې
خو مهيا دی مشه بې غمه | تيغ په نيام و نمك په کان کښې

❀ ❀ ❀

---

(۱) ملاقاسم ديوانه دفارسي ژبې شاعر اودصائب شاگردو (تذکرهٔ حسيني)
(۲) طالب آملي- دفارسي شاعرو، اوپه ۱۰۳۶ هکال وفات شوی دی

چه لب دې سره شي په رنګ و یان کښې دغرو نوسر کښې په بد خشان کښې
سرونه هسك کالا رې دې ګوری لعل و یاقوت ئې پراته په کان کښې



که ته غایر شي په دا سخن کښې یقین به وکړې پروت ئې په ظن کښې
و ګنه خاص د بېدل طبع همطرز ئې نشته هر ګز په فن کښې



شك چه را نو رې په دا ویلو کښې بازرنګ کړه ځکه زر که منګلو کښې
چه ستا په شان نه دی ګویا کېکان دی نا ست د هوا په الو تلو کښې



دبد قو لانو ژ بې په خو له کښې ګویا انګشت دی لیکن په خه کښې
صد ق په نزد شو د عالم هسې لکه خز لی په تو ر لیمه کښې



اشعار که لولی په تمام «روه» کښې کم به پرې پوه شی په دا ګر وه کښې
هره مصر ع شی خط د کېکا نو دا نائې نشته په دشت و کوه کښې



چه ستا ولاس ته زړه دهرچا راغی کو ګل ته کله پستنه بیا راغی
یو به ئې نسی د تا له لاسه په دا غرض که دزد حنا را غی



ګرم نګاه ئې شوخ وبیبا کې طر فه ادا ئې تل فر حنا کې
چه به خندا کښې دې اوښې دروهی پښې ئې وی دوا ړه رنې تما کې



چه‌په خندا شی دغر ونه زر کی　　شهباز ئې لاندې نه نظر ژر کی

نجات ئې نشته ز ما په پوهه　　په‌الواته کښې که باد وزر کی



په‌زړه مې گرځی دغرو نوڅوکې　　حملې دبازو د زر کو کوکې

ووایه څه کاد «روه» نسیمه!　　گیر امنگلی ز ییا منبو کې



گلگون لباسه! چه‌په‌تال زانگې　　جنبش په باد کاد گلو څانگی

جهنده برق وخرمن دگل دی　　چه‌له شوخیه په باغ کښې دانگی



ن مې په‌باغ کښې غنچی لیدلی　　سبا چه راغی و خند پېدلې

عندلیبان ئې په خند امست شول　　وې ئې له شوقه بلا بېدلې



کودن ته بویه ورانی جلیه　　ناري په‌غره کښې د څځلی

گلیانگ په‌څه کاد بلبلانو؟　　زماد یوان دی باغ دولی



چېږي هوا ته هم و ختلې　　دښکار کو ترې دې و وهلې

اسیر په‌دام کښې دبېش و کم ئی　　طمع شاهین کړی د درنې تلې



الفت دگلو چه شمی سولې　　له ډېره تاوه و بهېدلی

چه‌نه‌سوخته شوې نه‌گداخته‌شوې　　مینه نه ئې دبـاغ بلبلی



شراب د کومی میخانی شوهی  «شیدا» ئی گوره څه ادا مومی
چشمان دي کاندي سیه مستی  مژگان دي خاندي چه به شادرومی

❀ ❀ ❀

که ار ي ته پوه بار یك بینی  وهی به نه کړاې سخن چینی
دست که رساوی دشانی څه شو؟  کله نیوی شی موی د چینی

❀ ❀ ❀

دز پرو گلو دستی رنگینی  یعنی بسنت دی نشان ئی وینی
چه انتظار کا د زعفرانو  ستر گی لباس کړی به کاته سپینی

❀ ❀ ❀

نشته که گوري نشان د مینی  صفا به څه رنگ داخوان وینی
دا ئی اثر دی د بی مهر یه  چه ئی شوي سپینی لکه شام وینی

❀ ❀ ❀

نیکی اصیلی بدی کمینی  زشتي بدروئی یار صورت مینی
په پوه شان دی دتا په ستر گو  چه در ته گورم په نزد دمینی

❀ ❀ ❀

ښا یسته ونی نازه ئی پانه ی  وښکلی (۱) غاړی لکه شنی زانه ی
پکښی نظر کړه ښاخ دنبات دی  خوزي کر کری (۲) پنځی ممانه ی

❀ ❀ ❀

نه ئی بورنه (۳) وی نه ئی ورغانه ی  لعل ویا قوت شی کرم ته کانه ی
لا س د سر وی دی غلبېل کله  چه نه تو ئیږی ځنی پڅانه ی (٤)

❀ ❀ ❀

(۱) وکښلی (پ) (۲) کر کڼی (اس)
(۳) بورنه آرد خشکیکه برای ساختن زواله استعمال شود (پښتو قاموس ـ ۱۲۱ مخ)
(٤) پڅانه ی = اندك خورد (پښتو قاموس ۱٥۸ مخ)

زارشه تري هونهره طاؤسان زانه      لکه دو نو بېشمار ره پانه
د «روه» سيسي دي طرفه دلبري      نشته په هند کښي داهسي سکانه

❀ ❀ ❀

که خوك په کار کښي هر خورساوي      کله عيب چو په کله رهاوي
په پرده گوته همېش مطرب زدي      که ئي په مثل صوت د صدا وي

❀ ❀ ❀

که ور ته هر څه د بر مهيا وي      پروت به په حرص کښي اهل دنياوي
دقوت دپاره سر گرداني کا      که دك تر حلقه لکه آسيا وي

❀ ❀ ❀

چه د بر وي نرم تل ئي رقت وي      د خلق حسن پري سيا ست وي
تو يوي واوره اړ به عاقله      خندا چه چير ته د جراحت وي

❀ ❀ ❀

چه بي هنره صاحب د تاج وي      والي د ملك وما لك د باج وي
مثال ئي وايم وما ته غوز کره      لحيه د بز وي شا نه دعاج وي

❀ ❀ ❀

طفل ته گوره چه پستان روي      يا تما و ل شي په خوان پير وي
باعث دي دارنگ په خون خواري      ووايه نه دي ظالمان روي

❀ ❀ ❀

کريم په مثل هغه شجر وي      چه څني وړ يء هر چا ثمر وي
په لحان ئي نه خوري صرف ئي په بل کا      اه د پره شر مه سرا پا ثمر وي

❀ ❀ ❀

مضمون د شعر لکه پیکر وی — رنگین الفاظ ئی رخت وزیو روی
ورته ضرور دی دا دواړه څیزه — پیکر که هر څو د لر با تر وی



په لب ئې گوره دشیر پیر وی — پستان تر او سه د آفتاب روی
چه بازی کاندې په شان دطفل — آسمان که پیر شو بالغ به نه وی



که ژبې ژبې د گفتو گوشوې — دېرې باریکی نکتې دموشوې
نسبت ورائی ته د «اسیر» واوره — شایانې کله شانې د کښو شوې



اعتماد ولې په تجمل کوې — زر به معلوم کړې که تأمل کوې
مطلع یو دی دشام د صبح — نازپه سیاهی چه د کاکل کوې



چه لکه ابر بلند اقبال وی — ور ختې ارې زوال وبال وی
بام ئې ولاړ دی په تند سیلاب کښې — نه ئی ستون وی نه ئې دیوال وی



چه خور ندم وهم چور ندم وی — لذیذ قتغ ونان وگندم وی
که مگس ران کړې چوب دچوبدارو — تر مگسانو بسیار مردم وی



چه په اوئې همیشه سلوم(١) وی — باور دچاشی که دېر مظلوم وی
التفات کله فریاد رسان کا — فریاد دغرو نو ورته معلوم وی



---

(١) سلوم دنامدار په معنا راغلی دی (پښتو قاموس ــ ٦٤٤ مخ)

چەدهند سبز وخو ړلي پانوی　　لعل و یاقوت ئې دوا ړه امان وی
زړ کی چه ګرځی د «روه» پەغرونو　　ښایسته روغی په دغه شان وی

❀ ❀ ❀

کەپروت پەبند کښې الکەدستەوی　　چه آزا دەوی هغه رسته وی
تەوچشمی ته دآ فتاب ګوره　　نفس د صبح په کښې بسته وی

❀ ❀ ❀

چەخوښ پەښکار کښې دښکاری زړەوی　　له دې هوسه په الوا ته وی
پەخپل یقین کښې دښکاردپاره　　محتاج دپا زو د جره نه وی

❀ ❀ ❀

شپه چه سر توره تر صبح دمه وی　　دنمر لەتاوەڅه رنګ بیغمەوی
واوره له ما نه زما میننه !　　غم داسباب مکړه کەورځ دې سمەوی

❀ ❀ ❀

کەفرد تاج وشکوه دتخت نەوی　　وقت مسا عدو مدد دبخت نه وی
واوره راحت دی زما په پوهه　　غم بەترجاەوترجلال سخت نەوی

❀ ❀ ❀

چەئې بەزړه کښې روشن مردم نەوی　　بیبنا به واوره هغه مردم نه وی
کەپه تیاره کښې رخشان اخګر کیږدی　　کاذب مې بوله کەځنې کم نەوی

❀ ❀ ❀

اثر یه زړو نو اکثر دخوی وی　　جمع تل جوړه دګرم روی وی
ګرمی چەنشته پەشپ چراغ کښې　　تنها بلیږی راغ کە مشکوی وی

❀ ❀ ❀

همسرئې نشته دزیبا ئی          تمام ادا ده دلربا ئی
شکوری آب کړی له انفعاله          په لبو پل شه د میتها ئی

❀ ❀ ❀

واوره له ما نه که شنوا یې          د ازله دسته وای رسوا یې
درزق په مرسته سرګردانی کړي          که موږ تر حلقه لکه آسیا یې

❀ ❀ ❀

سپږمه آسمانه طرفه ریشخند یې          هنر دی نشته که سر بلند ئې
نادان په طمع د برګ و بر کړي          نه دی برکسو' نه برومند یې

❀ ❀ ❀

غوږ کړه ؤما ته که درست انصاف یې          نه مدعی یې نه سخن باف یې
باریک تر موی دی د «شیدا» شعر          هله ئې لوله که مو شګاف یې

❀ ❀ ❀

حریصه! وزی دسوی کال یې          مثال دی وایم چه دبر اکال یې
فی الحال کړي تشه داوږو خټه          سل دی حلقو نه ګویا غربال یې

❀ ❀ ❀

لب دي یاقوت دی حقه دهن یې          تر سر ترپایه بیا ګلبدن یې
طوفه تشبیه یې دغنچې واوواه          نن چه را غلی تر دې چمن یې

❀ ❀ ❀

که نه محمود د سبکتګین یې          صاحب د تاج ګهر آګین یې
چه زړه دی صاف وی له حب جاهه          په سیاهی کښې نقش نګین ئې

❀ ❀ ❀

ای چه مغروروئې په خوب روئی خوله مې شوه ستړې په ور ګویه
ومړم خبر نه زما له حاله د تاد زلفو له ما رخو ئسه



هغه بد مسته بې با که رنده یې چه‌شهره شوې تر سندو هنده ئې
په برندو ستر ګو د زړونو ښکار کوې بازه شهبازه ئې بحری شهنده یې



سمن عذاره جمله ستیزه یې ترسپینې توری‌هم خاطره تیزه‌ئې
آفت د خلق فتنه انګیزه یې بده قتاله بلا خون ریزه ئې



غلط بیځا یه په خپله ورانه یې هوادې اس‌دی ته‌پر بانه یې (١)
زر به‌دې ځای شی داتورې خاورې غا فله څاڅکی د باران یې



که تل په طور د ګبینه یې خالی له وضع د کرم نه یې
صرفه ئې نکره په خپلې منځی نورئې محظوظ شول په شهرینی



صورت رباط دی‌ته رهروی یې له‌ستومانی ئې تمام زګر وی یې
له چا نه مکره دتیمار طمعه په‌داعالم کښې «شیدا!» پردی یې



---

(١) بانه — له‌یون خخه اخېستې شوی دی یعنې سفر اوتګ

# مخمسات

## (۱)

بیادی تیغ ولې ترملا رخش دی زین کړ په لنده ـې ولی غشی آغزین کړ (۱)
په سروو ینو دې میدان ولې رنگین کړ چاله تاسره په دامیدان کښې کین کړ
داستم دې ولی خپل رسم وآئین کړ

ای په خوی لکه آتش په زړه سنگینې دازما احوال هم څه په ستر گو وینې ؟
شوې مې وچې لکه برق د صورت وینې انتظار مې مرأت وار کړې سترگې سپینې
د تاناز نظر انداز چرخ برین کړ

چه کجل دې څه خو پوری په چشمان شی تورمژگان دې همگی ماربچگان شی
تر افسون لاندې کول ئې خورا گران شی گزیده ئې هغه دم خانه و یران شی
تایه دا فتنه جهان بالا ٔپا ئین کړ

په ادا یه کرشمې په دلبری په هزار دهزاران افسون گری
خوك ئې نشته په عالم د همسری په مینا کښې لکه بند بنکلې پری
خپل صورت ئې زما هسې دلنشین کړ

لکه نمر پواحد آن کښې عشوه جوشه و هر چا ته وهی ستر گه فتنه کوشه
په زمین دامن کشانه زرین پوشه له چا نشوه همبستر و هم آغوشه
هفت کشور ئې په عشوه زیر نگین کړ

---

(۱) دا مخمس د(پ) له نسخې څخه را نقل شو .

دقلم په شان دې ستر گې سرمه سادی    د هر چا په اصطلاح سخن سرادی
ستا په سر کوم قسم طرفه ادا دی    په دافن دخاص وعام حیرت افرادی
نهایت ئې د کلام زیب وتحسین کړ

په داغم کښې تیره خاك درهگذر وم    پریشان لکه غبار ولاړ پسه در وم
په خوارۍ کښې دامن گیر دخپل دلبر وم    خلقه! زه په دا بلا کله خبر وم
چه دامن ئې افشانده نازو تمکین کړ

خو چه ستر گې مې دشمع په دودوا شوې    دوا ړه سرې لکه گلونه په ژړا شوې
ته مشغول کله زما په دلاسا شوې    تر فانوس په آشنائۍ کښې بیوفا شوې
تازما په اوښو تر کله آستین کړ!

هغه څوك چه په طلب ددلدار درو مي    لکه نمر په ستر گو تل په دالار درومي
گه افتان گهې خیزان خوار وزار درومي    په سینه ئې امبې بلې دنار درومي
سرئې کله په سایه و په بالین کړ

همیشه ئې غم دمز کې دآ سمان وی    اندیښنه ئې دجوال ودر یسمان وی
چه پسه غم آلوده عمر دد هقا ن وی    چه په څودانو خشنود لکه خاقان وی
آفرین مې په همت دخوشه چین کړ

رسم وراه دهمت نا که درپه زړه کړه    هرساعت ئې پیروی په تور لپمه کړه
په وچ حلق لکه ساحل قناعت و کړه    ددریاب په لوری هیڅ حر کت مه کړه
که ئې موج ترش وتا ته خپل جبین کړ

بېکسی مې هرګز نشوه غمګسا ره    آزرده لکه نرګس یم لەروز ګاره
تما شا تـه ئې عـالم راغی بېشمـا ره    چاو نه ربل اوس څەرنګه یې بېماره
التفات مې په حال ګله نبض بین کړ

وسامان تەئې فراش ګله پکار دی    نەئې پروت په ګاوو خر تکلیف دیار دی
په هرځای کښې چەراحت کوی تیار دی    بل ئې دافضل و هنر چه وفادار دی
ما بستر دخا ورو غوره په قالین کړ

په نهـاد دهر سړی کښې وفـا نشته    د زانو په آ ئینه کښې صـفا نشته
د نرګس ستر ګې هیڅېر ته بینا نشته    دهیڅ ګاو په شاخ کښې نرګـو خرما نشته
چائې کـام په بل ثمر ګله شیرین کړ

لکه ګاو دخرمن دور داآسمان کا    هغه کس په لګد کوب کښې پریشان کا
چەئې زړه په تو بەجمع خوشەسان کا    په کاستن، په انداختن ئې خوار، حیران کا
پەداخه کەئې څوك ماه یائې پروین کړ

تەبلبل دولایـت راغلې له «سرا یه»    دتوتی غوندې په هند سخن سرا یه
ستا اشعار دی ګـل شکر سخن آرا یه!    په ګـفتار «دشیدا» خوښ یم وایەوایه
زمـا نې دنا په طبع آفرین کړ

# (۲)مخمس(۱)

ای په مخ لکه آفتابه ستـا له تابه    خلقه دد رو یشـا نو شوه کبـابه
ګەافتـان ئې ګه خېزانه بې شرابه    دشبنم غوندې بې تـابه تر سیمـا به
راواته دې لوی آفت وەله حجا به

(۱)ددی مخمس دوه لومړی بندونه په نورو نسخو کښې نشته د(پ) لەنسخې څخه را نقل‌شوه.

چه ښکاره دې ښکلي مخ په چرخ دبام شي    فريفته ئې په خو بيو خاص وعام شي
نور ليمه دچا ګلفام لکه نماښام شي    څوك په طور ددر ګم و ګمنام شي
چه حجاب په مخ کښېږدې نيسي آفتابه

ستا په زلفو رو ښنې ده درخسارو    که ګوهر شبچراغ دی دنيا ما رو
منفعل کړ آب ورنګ ستا دعذارو    چه غنچه شوه دهر ګل له پرده دارو
و چمن تــه راتلــی نشــی بی نقابه

دعا شق دو ينو رنګ ستا په منګلو    له تهمته سره يا تــه شــه تر تــلو
څه ئې طمـع په شتن کـوی د تللو    دمرجان له پنجې رنګ نه ځی په و للو
يا که وی په محيط بحر کښې غرقابه

نو ربه څه رايم له هجره يا له مينې    هسې رنګ له غريوه ډکيم حال مې وينې
چه د تا په قدم بوس کښې دل سنګينې    دحنا غوندې مې ځی له ستر ګو ينې
په ژړا يم دد ور ان له انقــلا بــه

چه نظر و ښکلي مخ ته د تاو کــړم    ستر ګې سپينې لکه خال په دير کا ته کړم
بيا بيدا ستا ديدن ته تو رليمه کړم    بې د تا له مخه ځان و جهان څه کړم
په حيات به نشم ستري له دې دا به

خپله وضع په مثال دسو خته نی کړه    يا سکوت کړه په عالم کښې باز ګيروی کړه
که دريم عادت لري زړ ئې پردی کړه    تل په دا نکته کښې غور پيا پی کړه
نور به څه وايم و تا ته له دې بــا بــه

بيادما داو ښکو سيند شه چلي چلې    سرې له بې په لوغو ړن خاطر شوی بلې
دغبار غو ندې مې خپړ ی د ښو تــلـې    وايه ځې لکه تند باد په شتاب ولې
څه خو و نيسه عنان سپــك ر کــا بــه

چه مین په دا بی مهر دستمگار شوې بهره مند یوه دره په کومه چار شوې
مبتلا د استغنا په شهسوار شوی تورې خاورې دې په سر لکه غبار شوی
لائې نه پریږدي فتر الک خانه خرابه

دغنچې په شان کړه خپلې سترګې واهم مشتغل شه د چمن په تما شا هم
همت نه کاندي منت ددست وپا هم شبنم نه لری ز ینه بال و اعضا هم
و آسمان ته خه رنګ دروم ی له ترابه

ا ی په طو ر د شعلې شکم پر ستـه بلندۍ دې په تا بهاو پـه دیـګ پسته
قدم بوس ئی کړه هر دم دانه له دسته که و نکړ ه قنا عت د لقمې هـر سته
یا نه نشه بې ژووني بې کشکابه (۱)

چه فلك مې باعث شوی په ایذا دی دشفق غوند ی مې زخم نمکـسا دی
دعلاج فـکرئې کړی کله چادی داخر اب جها ن همه در دو دوا دی
یو پرما دمر هم پهه شوه نا یا بـه

درسته شپه ستادمحفل خدمت ګذاروم په خدمت کښې دې سر ګرمه شمع واروم
منتظر و مکا فات ته د کر دا ر وم ستا په رای کښې ددې ورځې سزاوا روم
چه مې و ژنې په سحر صاحب عتابه

چه ئې نمر د روښنۍ روی په زړه باندې دراحت په اسباب کله غفلت کاندې
بخت ویده وی دهمای ترسیوری لاندې که غافل دې ور ته ووې په ځان خاندې
نه دې هیڅ متأثر لـه دې اسبا به

د «شیدا» ګریه مدام له ډیره غمه هر ګز نه ده دبهار تر با ران کمه
بې اثره ئې پر یـا ر شوه تر شبنمه دغـنچې په دوه بودم تر صبحد مه
ستر ګی نه یورته کوی دناز له خوابه

(۱) یاتی نشه بی میئی بی کشکابه (پ)

# (۳) مخمس

ای په مخ لکه آفتاب زیبا صنمه ! تمنا مې ستا د مخ د ر لـه ا تمه
په کاته مې لکه شپه تر صبحدمه سیاهی شوه د چشمانو منعدمه
د دیدار ارمان مې یو ورځ تر عدمه

چه په زړه کښې ئې هوا د آفتاب رووی د شفق غوندې نیولی په لمبو وی
دوا ړه ستر کی ئې مدام دوینو جووی گرفتار د هفت سپهر په فتنو وی
کـنا ره وی تمام عمر لـه عالمه

چه تر حسنه پورې مخ د خپل یار گوری دروغجن دی لکه حال همېش مخ توری
دربیتنو په عالم کښې ئې نل زوری دذرې وحال ته گوره په هر لوری
چه ئې مینه په ژواك کښې نشوه کمه

چه نظر کې په ادب د خپل یار نه دی ساد گی ئې ستا په شان ده هوښیار نه دی
گستاخې دعا شقانو اطوار نه دی هېڅ گستاخ د خاص خلوت سزاوار نه دی
بیاد گل په رخسار غاښ هېڅ د شبنمه

د بېداد رسم و آئین ئې په زړه بادشه چه دا هسې لور په لور دادو فریاد شه
بیا مشغول په خونریزی هغه جلاد شه تېز نگاه ئې لکه سیف د فولاد شه
چه ئې پر ښود شوخئ ته حیا کرمه

ستا دستر گو شوخي نوه په مژ گانو د یرو په مخ کښې رم کړ غزا لانو
په غبار ئې د میدان ادا فهمانو گمان کړی وو د تا د آبروانو
داخبره خاص و عام کړه مسلمه

په شوخی د رنګینی د حنا کښه ستا په‌لاس کښې ده بښینه(۱) د آتش بله
خلقه شوه په دا اور مبتلا له چه په سوځي د عالم نا معطله
ولی زړه په‌عالم نه سوځې ا ظلمه؟

په حیات کښې وم د شمع په‌شان مړی د خدمت تهدي ولاړ وم سر بري کړی
په‌محنت باندې مې ګواه‌دی درست وګړی نهایت مې دزړه داغ دی له تاوړی
وخدمت نتیجه داوی ذې خدمه؟

د بد به د دنیا نه ده پایداره په زوال کښې جبین واړه هوښیاره
د آفتاب‌غوندې سرخ روځه‌له‌دې‌داره سیه پوښ تمام جهان کړه ترنهاره
چه فرغ نه‌وی‌هېڅوك ستا له ماتمه

سره لبان چه‌څه‌خو بیر ته‌په‌خندا کړې ښایسته دندان‌همه د برق بر ښنا کړې
تورې زلفې تاربه‌تار ابر آسا کړې پکښې مخ لکه‌مهتاب عالم آرا کړې
د ښایښت دنیا په‌تا باندی شوه تمه

ستا په زلفو رڼا کـله د رخسار ده روښنی په جست وجو شوې د ماده
خلقه پسې راغلې صد هزار ده دلیری ئې د خاطر په څه مقدار ده
چه‌په‌ځای پیچیده‌پروت‌دی‌لا بیغمه

څه نظر کړم دجهان په ګلستان کښې د کرم لویه شیوه ده په انسان کښې
ګلیچه که‌لکه ګل لرې په‌خوان کښې تاربتارئی کړه‌په‌خلقو په‌احسان کښې
شګفته لره جبین صاحب کرمه

---

(۱) سبی (پ).

که نظر په راه ورسم د دوران کړي کجروی به خاطر یاده د آسمان کړی
برطرف به خیالات د سود وزیان کړي څه امید دانتفاع په دي کاروان کړي

چه یوسف شه پکښي خرڅ په څودرمه

زه که یو قدم روان چېري په لاروم لکه حرف د نومشقانو زیر باروم
عاقبت افتادګی وی سخت ناچار وم ملتجي والتفات ته د آبکار وم

خلاصي نه موم له لوح وله قلمه

ته به څه کوې زما د حیات طبعه زه داوښو په لار دروموم لکـه شمعه
مهیاوی پکښي تېغ دسر په قمعه بدرقه مې نشی کړی غفیره جمعه

دعدم وسرای ته دروموم له حرمه

که په شان د کواکب شب زنده داروی هرګز نکړې ستر ګی یې خود بیداروی
په سحر به له آفتاب سره دچار وی مستهلك به ئې فوار په ښه انوار وی

د فنا مرآت به وساتي له دمه

چه فلك ئې مخالف وناسازګار وی خسارت ئې نتیجه د کارو بار وی
د ګرداب غوندی ئې لبز د آسیاوار وی داورو حاصل ئې خاوری تورغباروی

تشنه لب لکه ساحل پاتې له یمه

څه حاصل دی د دامن له افشاندنه غبار نه رسي د ګلو تـر دامنه
پاکیزه جامه ئی راوړه تر چمنه احتیاط مکړه هرګز د ګـل خرمنه

چه په خاك د «شیدا» اخلې څوقدمه

# (٤) مخمس

# دعبدالقادرخان پرغزل

کەروښن مې سجنجل (۱) دهر تدبیر کړ — پەهزارشانه مې صاف انو ر منیر کړ
ځان ئې کله د گلرخ عکس پذیر کړ — چەئې زړەزماسوری دعشق پەتیر کړ
ترهغه سوری مې مخ د آشنا ځیر کړ

دشانې پەدود گوزارور باندې کیږي — سیه مار دي دی د زلفو چه تاویږي
که آتش ئې درخسار دی چەلو گیږي — پەسپین مخ باندې ئې خطدی چەښکاریږي
کەئې زنې تە مېږ یوساز پهیر کړ

بیاسوگرم پەخپل کار کښې چەداشوه — دعاشق زړابدلــه پــه خندا شوه
دا میدغنچه ئې واپه سپین سباشوه — ستادمخ آفتاب چه وخوت پرې رڼاشوه
چەئې ستا په تورو زلفو کښې شبگیر کړ

هغه وخت چــه مهیا راتــەوصـال وو — گهې بوس، گــهې کــنار وقیلوقالۋ
درته څه وایم چەڅه فراغ البال ۋ — څومې زړەدیار پەوصل کښې خوشحالۋ
بوپه سلە تر هغه هجر ان زهیر کړ

چه بریان پەهغو گـرمو لمبو نــدی — کەانـکار کــا بوالهوس ملامتڅەدی
پەداسوز باندې خبر دمهجور زړەدی — لەدې اوره سوزان او دبـپلتا نەدی
ځکه ځان هندو وسولووته خیر کړ

---

(۱) سجنجل رومی لغت دی د آئینې پەمعنا (غیاث اللغات).

چه‌شپه‌م صورت او به کړیه ژړا کښې    مرحباور نه ګل ووي په‌خندا کښې
ترکن کمیناوه‌دستر کو په ماوا کښې    بې محنته راحت نشته په‌دنیا کښې
خوشحا لی نصیب دچاچه ئې دلګیر کړ

چه‌آواز ستاد خوبور په‌هراقصا ولاړ    په‌طلب‌دې سر ګړ دان بادسبا ولاړ
... عمړ دتماشه تماشا ولاړ    له‌هوسه په خندا خندا په شا ولاړ
سخندانووچه ګل ستا دمخ نظیر کړ

دم‌بدم دیار دیدار عبدالقادر ګا    هرنفس بوس‌وکنار عبدالقادر ګا
«دشیدا» طور اطوار عبدالقادر ګا    له هجرا نه بهڅه دار عبدالقادر ګا
چه‌ئې خیال دیار دمخ په‌زړه تصویر کړ

# مسدسات

## (۱) درحمان بابادمطلع په تضمین

هرڅګکاوئې لیکه جام دمې ناب وي    مهیا دې‌څو دی تمام اسباب وي
که‌هندوکه‌مسلمان که‌شیخ‌وشاب وي    په‌یوه ادائې درست بزم خراب‌وي
تل دې‌ستا دخواب آلودوسترګو خواب‌وي
چه‌فتنه په خواب ویده شي ډیر ثواب وي

داکجل په‌ئې ګا جوړه څه بلاته؟    مهیا شوه توره شپه دزړو نوغلا ته
تښا فل‌ئې دی بهتر لـه التـفاته    دا عطا مې ئې بخښلی ده لقاته
تل دې ستا دخواب آلو د و سترګو خواب وي
چه فتنه په خواب ویده شي ډیر ثواب وي

خپلی توری دی پەچادی نن سری کړی چەایده شی بیا پە سرو وینو کـکړی
خلقې ئې تند سیلاب دی دآب زړی ځکه داوایم نـاترسې خونـه مری

تل دې ستادخواب آلودو سترګو خواب وی
چەفتنه پە خواب ویدەشی ډیـر ثـواب وی

لـه هیـبته ئې وګړی تارپه تـار شی دتشویش په بندئې زړونه ګرفتارشی
لوی آفت دکورو کـلی ددیـار شی تورماروانه چەیودم چپرته بیدارشی

تل دې ستادخواب آلودو سترګو خواب وی
چه فتنه پەخواب ویـده شی ډیر ثواب وی

وایه بیایه څه غـرض محـفل آرا ده چەحاضرئې په مجلس جام دصهباده
در ته ایښی دخسته زړ و نو میناده ویښیده ئې دمینا پەځان بـلاده

تل دې ستادخواب آلو دوسترګو خواب وی
چه فتنه پەخواب ویده شی ډیر ثواب وی

ترهغه چه دغنچـی مژه وانـه وی عندلیب پەباغ وراغ کښې رسوانەوی
پە چمن کښې دا فکار و نوا نه وی هیڅ تشویش پەزړه ددردو دوانه وی

تل دې ستادخواب آلودوسترګو خواب وی
چه فتنەپه خواب و یده شی ډیر ثواب وی

دنګاه ګرمی ئی نشته پەنیران کښې شورپیدا دقیامت شەپه جهان کـښې
حا لیان بەڅەرنګ زیست کاپەامان کښې کهکشان لکەخس ووسوپه آسمان کښی

تل دې دخواب آلود و سترګو خواب وی
چەفتنه پە خواب و یده شی ډیرثواب وی

هیڅ تر کش ئې خالي نه‌دی له‌خدنګه دخدنګ اثرئې زیات دی له تفنګه
دغمزی توره‌ئې صافه تل بې زنګه دلبران‌ئې کناره دروهی له جنګه

تل‌دې ستا دخواب آلودو ستر ګوخواب‌وی
چه‌فتنه په خواب ویده شی ډیر ثواب وی

یوله ډیرې بیمارۍ دی خاطر تېز بل‌په کاردخونخوارۍ دی بدپرهېز
بې ګناهه دخسته «شیدا» خون ریز دلبران زیان‌د خلقو زیان بلا انګېز

تل‌دې ستا دخواب آلو دوستر ګو خواب وی
چه فتنه په خواب ویده شی‌ډیر ثواب وی

# (۲) مسدس در حمان بابا د مقطع

په تضمین

آئینه که‌وخپل ځان ته‌رو برو کړی ننداره‌په‌خپل جمال کښې مو به‌مو کړی
بېهوشی‌په‌خپل شعار حیرت به‌خو کړي له تمثال سره به دغه ګفتګو کړې

تاچه مخ ډیری، ستر ګی دآهو کړې
ته‌پری یې، که آهوئې که جادو کړې

بنا یسته می ډیر لید لی دی دغو رې ستا په ستر ګومې‌قسم عشوه پروری
دا بلا نه ده زده کړی هیڅ دلبری پرده‌واخله ددی راز طرفه پیکرې

تاچه‌مخ دیری، ستر ګی دآهو کړې
ته‌پری یې، که آهویی، که‌جادو کړی

غوښتی ماد بنګالی تمام کشور دی په‌ختن باندی‌مې شوی ډیر ګذردی
به‌حلب کښې مې لیدلی شیشه ګر دی داعلم له‌دې نیر نګه بې خبر دی

تاچه مخ دیری، ستر ګی د آهو کړی
ته پری یی، که آهویی، که‌جادو کړې

د هوا پری را کوزه ستا په بام شي ستاد ستر ګو په لیده غزالۀ رام شي
ساحران دی تواضع کا په سلام شي علامت در کښې لیده دهر کدام شي

تاچه مخ دپری . ستر ګی د آهو کړي
ته پری ئی، که آهوئی، که جادو کړي

ستا جمال چه د تحقیق په ستر ګو څیر کړم اندیښنه ګهی ددام که د تسخیر کړم
یا په دفع د ګزند کښینم تدبیر کړم نه پوهیږم څه بیان څه رنګ تعبیر کړم

تاچه مخ دپری، ستر ګی دآهو کړي
ته پری یې که آهو یې، که جادو کړي

که وارد د چین له ملکه مصور دی او س ولاړ لکه صورت متحیر دی
ستا په نقش و په نګار کښې مقصر دی د حیرت په ژبه هسې مستفسر دی

تاچه مخ دپری، ستر ګی دآهو کړی
ته پری یې . که آهو یی، که جادو کړی

په نظر د «شیدا» راغله ناګهانه په هران کښې ای جلوه په خوالوانه
آواره پسې عالم له خان و مانه دا نغمه به ئی و تله له ژبانه

تا چه مخ دپری ستر ګی د آهو کړی
ته پری یی که آهو یی، که جاد و کړي

## (۳) مسدس: د پښتو انیو شاعرانو د مطلعو په تضمین

راته ووی عندلیب په نو بهار کښې چه لیدلی می سنان دی په هر ښار کښې
نشته فرق په شاخ ګل په سر ددار کښې دیتنګ په شان می سوزی ګل په نار کښې

مغرور مه اوسه د عشق په کاروبار کښې
هر خسري تیره تیغ دی په ډالار کښې

څه‌واوره دا کلام له ماد ل ریشه زړه‌مې صبر کړ له‌ځانه‌هم‌له‌خویشه
الوداع نعر ی‌و هم‌جفاانـد یـشه ګوره کوهه په‌قسمت ده رانه‌پیشه

ستاپه کو ی کښې دسرونو خطر شته د ی
زماهم پـه دغـه لاره ګـذ ر شـته دی

کیېږدي تاج دچاپه سر دشادماني په ګردن دځیرو وکړی تیغ ر انی
څوك دي کاندي‌په‌هر شان ثناخواني څوك پټان کـښه بسمل د قر با نی

دخو بی‌نو م دي لا ړ د بد خو هم لا
په‌خپل کلی‌په‌محلت په‌هر سو هم‌لا (۱)

وعالم‌ته چه نظر وکړی هرڅه شته نیك وبدتر بدو بد تر نیکو‌بنه شته
په‌میزان کښې‌ددوران‌سپك‌ودرانه‌شته هسی نه‌وایم خو باچه‌خوبان‌نه شتـه

دجهان په‌مخ به ځیر و ی ښه مخو نه
ولی‌زړه‌مې‌ستاومخ‌ته کړه خونـه

چه‌طبیب دتاپه کوی دی ورود کړی که زنده کاپه‌علاج د لحد مړ ی
ورته وواپه دز ړه اختیـار د ر کړی ولې اچوې په‌ستر کو کښې خسر ی

آرزومن دیار ددرد په د و ا مه شـه
بیګانه دخپلو مخ لره رامه شه(۲)

آواره‌به‌په هر لوری خوب و زشت‌شی زاز له به‌په مسجدهم په کنشت شی
فراموش به‌دعالم دوزخ ، بهشت شی نـارپه‌تار به‌ددی‌شهر سنـګ‌وخشت‌شی

په خو نی ها تی سپره شو ه مې یـرسته
زه هم مست‌،‌هاتی‌هم مست‌دی‌،‌داهم‌مسته

---

(۱) دادخوشحال‌خان دغزل مطلع ده . (۲) دادحمیدبابا دغزل مطلع‌ده .

محبت مې و کړ ځای په درست بدن کښې　　لرم اور لکه فانوس په پیرهن کښې
خوف خواری کرم دچگر په دل بستن کښې　　کوم زیست لکه غنچه په دا گلشن کښې

دهجران له ډیره غمه مې زړه چوی
شکر شکر چه فانی د ، تل به نه وی

لکه څوك چه سپینه توره ، خنجر تیز کا　　مهیا تمام اسباب داوی ستیز کا
لغه پسه میدانونه رنگ آمیز کا　　هغه دم چه دعالم قتل وخون ریز کا

له اوله پر سر جوړی کا دړی
بیاتیکه په وروځو کیږدی خونږی (۱)

په دوام وماته غوز کړه ستمگاری!　　په جفا ، جوروستم زما خونخواری !
اوس په ما کیږی هغه ناسازی چار ې　　چدئی ته وی په آرزو دښمن شعارې

ستا په تورمې مال تالا ، مانه نږیږی
راشه گوره که په دادی خواسر یږی (۲)

گری مادی دعالم په کار کښې غور　　دافانی جهان مې ولید په هر طور
په هر چا نه دی یکسان دآسمان دور　　څوك خندا هوا ، هوس کا څوك په ځور

دیوه په غولی ویر ، د بل سر ود دی
چیر ته غم ، چیر ته ښادی د دنیا دوددی

ستا جمال چه په عالم کښې بی نظیردی　　په افراط ددی خو بیو د لیدیردی
نن مانې کله قادر ستا په تصویر دی　　دسحبان له فهمه لری دا تقریر دی

آئینی و ته نظر کړه شیوه گرې
خود په ستاد حسن و کاندی خبرې

---

(۱) دادخوشحال خان دغزل مطلع ده (۲) دامطلع هم دخوشحال خان ده .

هرگز نه کوم نظر گـل ونسرین ته ورسره دهند سبزان ، نـگارچين ته
دقمرو صاف عارض د نمر جبين تـه هيڅ خالي نه يم شيدا وآن و اين ته

دلبر مخ مـا ته را ښڅي په هر آن کښې
گه په سکـان کښې جلوه گرشي، گه په سپان کښې

# قصايد

بهاريه قصيده :

بيا تحويل شود حمل گوره آثـار شـگـفـته په هـر طـرف تـازه بهـار
څـه بيان و کړم د گـلو له افراطه يـا انواع کړم د گـلو در ته شمار
ياچهچهه دعند ليب په ښاخ د گـلو يـاجـلوه دروان آب پـه سبـزه زار
يـاخو بي پـه هر طـرف د خـرميه سر سبزی دباغ وراغ هم د کـو هسار
ياپه خم کي دبهار پـه رنـگ د گـلو رنـگـينه گورو محلت گـلي ديار (۱)
يائي صوت په ځوځو شانه دمرغانو يـائي لحن ځوا لو نه خوش منقـار
يـاپه سر دهرزلـمـی زيبـا گـلونـه ياپـه غـاړه دخـو بانـو رعنـا هار
ياله خياله آ شفته ددستـارولو نـه بـې شماله توري زلـفي تـار پـه تار
يـا لبـاس دد ابرانو قـسم قـسم يائي رنـگ سبزو گـلفام و صندلوار
يائي پروت دسروپيزوان په سرولبانو يائي تيك په تـوراو ربل بانديې آشکار
يـائي دور دخلخال او د څړيه په خرام کښې ئې ادا دژ رنـگـبهار
يـانغمه دمغـني پـه خو خـو رنـگه ترانـه ئې د «شيدا» رنـگين اشعـار
يا شوخي درقـاصانو په ادا کښې يا گرمي د حريـفانوپه خپل کـار
ياهر دم باده نيوش (۲) دساقيـانو منعدم ويـنمه هـوش دبـاده خوار

(۱) دا بيت د(پ) له نسخې څخه را نقل شو. (۲) باده نيوش (پ)

کههر څوپهدابیان کښې اطناب وکړم
معترف به شم آخر په اقتصار

اعتراض مې دانشا په قصر مه کړه
په اجمال کښې ډیر تفصیل مومي هوښیار

ار وید لی بهدی داضرب المثل وی
مشت جودی نمونه ددر ست خروار

په تعطیل کښې مې تطویل د کلام پرېوت
حوالهمې کړ دا شان په اختصار

هسې جوش دهز اره په هرلور و ښم
ورسره د شقایق و د گلنار

چه لباس بهئی تمام گل انارشی
نسترن دی کهسمن دی کهاز هار

دغنچې لهپردې مخ د گل ښکارهشی
دعروس غوندې پهډیر زیب و سینګار

چه په سر لکه شعله جوا لهشی
پس شرر د گلو تخم کړ گلکار (۱)

توري زلفې ئې پریشانی پهسبا شوی
شانه هیڅ د بنفشې نه ده په کار

همګی په بوی د گلو عنبر سائی
احتیاج ئې هر گز نشته د عطار

پریشانی د گل خرمن کړ گلفرو شو
که د برق پهشعله گرم دی بازار ؟

په لنبهئی لکه دود د بهار ابر
افروختهپهباغ وراغ د گلو نار (۲)

گداختهئی هر شبنم آب روانی هم
نالیده ئې پههر شاخ سوخته هزار

نما شاد یاسمن و سمین گوره
چه پهباغ کښې بولبله دی دچار

شګفتهئی په جلوه تمام گلشن دې
کشاده ئې پیشانی لکه اسحار

لبجوی په سبزه خط آراسته گوره
ورسره د موج آب بوس و کنار

نن لیدهپه دابهار کښې عجب کارشی
لکه سر و خاطر جمع دچنار

لکه قوس د قزح گلګون شفق هم
رنګین شوی دی په گل درودیوار

نن پهداموسم کښې تورغرونهسپین غرهم
چه همه دی دبهار طرفه گلزار

(۱) (۲) دادوه بیتو نه د (پ) له نسخې څخه را نقل شوه ، پهنورو نسخو کې نشته.

رنگینی ئی په رفعت کښې عجب زیب لــا ‌ نمایان لــکه شفق لــیل و نــهــا ر

باغ و راغ ددې بهار بوقلمــون دی ‌ مهیا په کښې عجب نقــش و نــگــار

څه بیان درته ندرت ددې بهار کړم ‌ تماشې ته ئی نرگس راغی بیمــا ر

په یقین زما تمام چین وارژنګ دی ‌ که قــریه ده . که قصبه ده که امصار

په شجر باندی گمان دشجر نه شــی ‌ سرسبزی په هسې شان ده دا شجــار

گویا خلاصی فواری په هرطرف شوی ‌ پــه کــښې آب دزمرد ، نه دانهار

له چشمې ئی دآفتاب مگر سیلان دی ‌ چه هرخوك وایی دی آب وته انوار

فواره ئې دنمر زیاته په طلوع کښې ‌ دزوال صفائــی وګــنه (١) آ بشار

لــکه خط شعاعی په شنه آسمان کښې ‌ په سبزه کښې د جویونو استمــرار

پــه خورنګه ئې جلوه لــکه بهــار ده ‌ که په ځانگو مرغان ناست دی یاطیار

څه بیان ئــی داحان و کرم وتــاته ‌ په منقار سره ساکــت شو موسیقار

دیاقوت پرده کــه غر د بدخشان شی ‌ تري وا تــه دآواز وګــنه دشــوار

په الوان ئې هریونباخ بوقلمون شی ‌ یا ګــلونه رنګــارنــګ په شنه دستار

په طیران ئی کل هوا منقش بام دی ‌ په ندرت ئی کــامانی دچین اقرار

سامعه که مدرکه کــه باصره ده ‌ پــه سماع و ، په ادراك و ، په دیدار

په هــرآن په هرزمان دی مشتغلی ‌ ذایقه تراوسه نه موهی خپــل وار

اکل و شرب می فراموش په اهوس دی ‌ لاجرم بیان می نشــو د اثــمار

غلبه د چراغان پــه شب تــار ده ‌ کــه حمله ده د مغل په هند و بار

امارت د شمع کم ترشاهی نه دی ‌ پروانه ئی د فرمــان په اعتبــار

---

(١) وګوره (پ) .

به چرچه درنګين نظم شعر خوانو — مستفيد د صنايع په انحصار
هر بياض ئې د بهار سپيده دم کړ — تر بلبل ئې د ګلبانګ اثر بسيار
دمهتاب خوبي به‌څه وايم چه‌څه ده ؟ — مګر بخت شو منور دشب تار
ومرهم ته‌شي محتاج د هرچا زړونه — چه زخمك د مطرب ولګي په تار
تار ويار، رودو بهار، بزم وساقي هم — باغ وراغ، مرغ والحان، سمع وابصار
ورسره کاهنګامه د اشعار ګرمه — نن چه واخلي مغني په لاس هزمار
دمضمون په‌بلندي هسي ښکاره شي — قصيده، بيت وغزل د قت شعار
ګويا ايښي دي آسمان په خپلو تلو — نفيس جنس د معنى موزون ګفتار
چه‌په‌سوز باندي ئې روغ زړونه کباب دي — دخوشخوان (۱) آواز شعله‌ده‌نه‌شرار
اوس دني له‌سينې هسي نفس وزي — لکه غشي ناوکي د کمان‌دار
دغنچي په‌شان مينا چپرته لبريزه — لکه ګل جام وساغر چپرته سرشار
چپرته هسي دمينا په قلقل نشه — لکه زړه دخوشګويا نوپه تکرار
حلاوت د ميو هسي افراط وکړ — چه مستان دکباب‌نه کا انتظار
فراموش ځان وجهان، کون ومکان کا — چه کمال دمستي راشي په حضار
هيڅ خبر لکه کباب وربانديې نه‌وي — پاشيده که ئې نمك شي په پرهار
دنشأ عالم پيدا په‌هسي شان شي (۲) — چه‌اوضاع ئې وي عجيب‌غريب اطوار
رعنائي د هر زيبا شي يو په سله — يوائر پکښي په قدر د هزار
دانبيښه وينم به‌لاس کښي د ګلفامو — که‌غنچه په ښاخ ګل نه د فرخار

---

(۱) دهفت خوان (پ) .
(۲) شي پيدا په‌هسي عالم دنشأ (پ) ،

سرخوشان په تماشا د باغ و راغ دی — ورسره ئی زړه مشغول په نارویار

په دا وقت ده د مینا ریز عجبه — هیڅ مونده نشی دزړونو انکسار

میکشانو ته زړه صاف و آسمان وینم — پکښې نشته د مینا په شان غبار

دا کراه صورت حجاب وینو په مخ کښې — شکایت د زمانې په استتار

بې د زنیو له دستاره پر پشان نشته — چه لری له جمعیت سره نقار

بې قدری ئې هسې شان ده له و فوره — چه ځان روغ په صورت نه وینی آزار

صحت هسې قلمرو د صورت و اخیست — هسې شان ځنې آزار و کړ فرار

چه د ار و وته مونده په سعی نه شی — په تمام صورت کښې رنځ ذره مقدار

څرخ وهل ددل آرام دی راته وایه — که فلك دی نن زمایه کام دوار

په رنګین قالین رفتار کوی درقص — که صبا دی په ګلشن ګاندې ګذار

حنائی قدم چه اوس په قالین کیږدی — د کاشان اهل صنعت شه ځنې زار

په صفائې د لقا قالین مرآت شی — د توتی نقش ګفتار ګاندې چغار

په صدائې دهر زنګ اود کنګروهم — هر نفس دشاهد باز، خاطر افګار

دمهتاب په چپ وراست، په پیش وپس هم — لکه خاص شی کوا کب په انتشار

د سیم تن په هر طرف افراط د نقد — چه حاصل ئې وی دفن کامل عیار

په ادا د تبسم وینم ننګاه هم — په مسی پان و کجل نشه خمار

ناظران که دحیوان په چشمه آب څښې — څه معنی چه معاً نشې جان سپار

د آبرو په اشارت زړونه ور ژنی — دسخن په کنایت کښې ئې نا تار

لکه کلك دمصور په دا ایوان کښې — سربازی په هر صورت کا جان نثار

ګویا اور په نیستان دی لګیدلی — په شوخی کښې ئې مژګان ګرم انظار

نیز نګاه ئې دی آفت د تورو ستر ګو — لکه و باسی هندی په چا کټار

دغمزې په ادا زړه له عشقبازانو — هسی وړی لکه عقاب په منګل ښکار

څوك په وضع د تمکین کښې ساکت ناست دی — د شوخۍ په آیین کښې څوك طرار

څه رنګ وډ ری خندا د تازه ګلو — یا سرورنه کا ابتدا ددې روز ګار

چه لباس دد لبرانو زعفرانی دی — ور سره د بهار سیل مند د ګار

د با دلی لهر شوخی د کنار یو — په اجمال ئې د صفت کوم اظهار

په بدن د آفتاب روشعاعی خط شی — چه ظلمت ئې له اثره کا کنار

د سیمتن سالو حیرت بولی دصبح — چه نظر ور باندې کا کبار، صغار

آراسته لکه بهار سبز پوشان دی — ښایسته په سپین لباس لکه اقمار

چه لباس لکه آسمان ستاره دار کا — ورته خواب د حیرت یوسی هر نظار

لاجورد دی په یاقوت مرصع شوی — چه لباس نافرمانی کا ګلعذار

څه اثر لری ادا د صندل رنګو — چه تاوېږی ئې دردمند لکه بیمار

ګل جلوه د نوبهار وهنی ناقصه — که سبزان نه وای په خپل حسن اوخار

چه عاشق د ګندم ګون نه دی حیوان دی — که آدم ئې ور پقته به شي ناچار

لکه موج د شرابو په شرابو — سور پېزوان ئې په لبانو نا قرار

د آفتاب په چشمه سیوری د سنبل دی (۱) — توري زلفې ئې پر ښنا ئې په رخسار

تور وربل ئې په مجاز د صافی طبعه — په مضمون رنګین ئې تیك ګڼه مشار

په آواز ئې د خلخال او د څرید — دفتنې له ستر ګو خواب ځی په تلوار

راشه و ګوره خنده د غنچه لبو — معترف شه په رعنا ګل بی خار

---

(۱) سیوره دسنبل ده (پ)

چه په غاړه کړ خوبانو هار د ګلو ‌ ‌ ‌ ‌ په خندا کښی د هیڅ ګل نشته اختیار

هیڅ خبر نه دی په درد له ډیر سرو ره ‌ ‌ ‌ ‌ که ئی ستن تر پر هار وخته بار بار

تحیر می په فحوا د خپل کلام دی ‌ ‌ ‌ ‌ د غفلت په خواب ویده [۱] وم نه بیدار

قیل و قال مې د خیال وو په دې خواب کښی ‌ ‌ ‌ ‌ د تعبیر قابل ئې مه ګڼه زنهار

پاسبانانو درباط را باندی زغ کړ ‌ ‌ ‌ ‌ په داشان ئې ګویائی وه د اخبار

چه بیدار په بضاعت د خپل دکان شو ‌ ‌ ‌ ‌ ور پسی دی په هر لور د زدومکار

پسر ورې دویښی مور په ړنا ورځی ‌ ‌ ‌ ‌ شب روان د دې دیار دی بس غدار

فلك شن و تا ته ناسته دی که پوهیږی ‌ ‌ ‌ ‌ تا ئی تل له جفا ژغوره کړد ګار

په هر رخ لیده خونریز په دا بساط شی ‌ ‌ ‌ ‌ احتیاط لکه شاطر کړه خپل کردار

پای مالی ګا د جهان په جولان ګاه کښی ‌ ‌ ‌ ‌ د آسمان کبود سم نه دروم په لار

کجروی ئې لکه اسپ د شطرنج نه ځی ‌ ‌ ‌ ‌ ته ئې ور کړه خپل شاو شهسوار

د دنیا اوج لرلی په ډیر غم دی ‌ ‌ ‌ ‌ لکه کینوې عاصی په سر د دار

خبردار اوسه د دهر له نیرنګه ‌ ‌ ‌ ‌ په مال کښی د خپل کار کوه ابکار

یکروئی مه غواړه هیڅ له دې دورنګه ‌ ‌ ‌ ‌ نظر وکړه په غشی وبه ابکار (۲)

غداری کوی له دوسته له دښمنه ‌ ‌ ‌ ‌ که د صلح په صورت که د پیکار

اعتماد ئې هیڅ په دا په ستد نشته ‌ ‌ ‌ ‌ کجبازی ئې ده په مثل د قمار

ور ته هیڅ نه شی واه بې دګرګرنه ‌ ‌ ‌ ‌ که ئې طور، که ئې طریق دی، که هنجار

عافیت دی پیاده په کار کښی وینم ‌ ‌ ‌ ‌ مکره خیال د دې شتر بې مهار

حریفان ئې آواره کړل په دا دشته ‌ ‌ ‌ ‌ زه او ته د چا په شمار و په قطار

---

[۱] او ده [پ] [۲] دابیت د [پ] له نسخی څخه را نقل شو.

دبدبه ئې دشاهانو کړه بـر همـه — چه مېنې وولور په لور په اشتهـار

انقلاب دزمانې تنـد وسلـې ده — چه په هند ئې ؤ راغلی د ندو کـار

طاؤسی تخت ئې په شان د بنې واخیست — بیا ئې تیر کړ تر کابل و قندهار

سروتاج ئې سره نه مومې تر اوسه — چه ئې و کړ په ادر با ندې بلغار

مبدل ئې په تخته دشاهی تخت شو — دطلل اطلاق ئې و شو په در بار

دسلجوق جاه جلال په چیر نه لاړ شو — دا ساما نګاه ومنال و استکبار

وایه څه شو کړ وفر د ساسانیو — ور سره د کیانیو اقتـدار

بدنامی ئې پوری کړی په رستم ده — زمانه ده په خونریز داسفندیار

یه بنا کښې ئې پرې نښوه یوه خښته — تار په تار ئې کړ هغه رو ئین حصار

ددا رانیان ئې څه زیرو زبر کـړ — د کسرای ایوان ئې څه رنګ کړ هموار

یا ته هسې شو مرأت له سکندره — چه ئې شو له حیرانیه سر و کـار

دبدبه دسلیمان په چیرته و لاړه — غلغلـه ئې د حشـم و د انقـار

چه جنود ئې په کثرت مور و ملخ وو — تر سر پر لاندې ئې یادلکه کهسار

هر یو ګردئې په میدان دمیدان ګرد کړ — لکه غرونه په میدان کښې استوار

درستم رخش کجا ګرز و ګوپال هم — یا ته شوی ئې داستان دې په اعصار

په خواب ئې ژبه لال دبیوه زال شوه — چه تر خاورو شو رستم زارو نزار

خیله خوله ئې سره په ویښو دسهراب کړه — کیو ئې مات کړ په بساط دفانی دار

تر قیامته به خپل سر نه کاندې پورته — دعبرت په ګرز ئې و چاوده دمار

دمجنون شورش ئې وویست له جهانه — دلیلی په حسن خاورې شوې انبار

دفرهاد تیشه کجا صدائې څه شوه — ګل ادا وه دشیرین مستعار

ځه بیان و کړم له دې حال و احواله — السنه کاندې قصور په دااذ کار

خپله خونه لکه مرغ دپر کاه کړه — چه محتاج نه شې په عمر د معمار

تعبیه په کې هرگز ددیگدان مکړه — د دستاس دپاره مکړه اضطرار

په اومه دانه هم دفع د جوع وشی — په فاقه په فقر نه بویه هیڅ عار

وسیله د کار منگلې یا منقار کړه — هیڅ تکلیف مه زده په خوېش وپه تبار

تل داهسې په قلت داسباب زیست کړه — بیا په زړه لره هر دم دلومې ډار

تېر ول په هر تقدیر دصبح وشام دې — رسول و انصرام ته داعمار

چه مګس دچا دخوان نشې عزیزه — رعایت کړه دعزت و دوقار

که دې نشته رېزه نان په سفره باندې — د جگر په وینو وکوه نشخوار

چه مشغول په رعایت دتکلیف نشې — هم تشنه وا یې و ځاته هم نهار

مقراضې حلوا، شیرمال، بریده آش هم — قشتری او هم قورمه زرده آچار

وشربت ته د گلاب و بېدمشك بویه — خصوصاً نبات دمصر خوشگوار

عمر زیات په تناول د پلا و نشو — خوك ونه وژله ازر بشو یاجوار

کله بیم دزلزلې هغه کسان کا — چه ئې خښتې په بام نشته یا احجار

په گلیم به دسمور کار و نه وشی — که غرض نه دې زینت و افتخار

بندې وان د تکلف په اغلال مشه — له آزاد سره سم نه دې گرفتار

گرېزان او سه د خلق له صحبته — ته خبر نه ئې هرگز په دا اضرار

دعنقا په اجتناب کسې عافیت دی — نه عنقا و رپسې گرځی نه شونقار (۱)

---

(۱) شنقار یو قسم باز دی

پەمحنت سره حاصله متاع ور کړه — را نیوه ئې همېشه و یمنی بصار
دصدف دمشت گره په زوروا کیبزی — چەقطره پەمحنت ور کـا در مدار
دریغ ئې‌مەلره لە چاد کرم خوی‌دی — لکه نخل میسر بېش و کم بـار
څه‌حاصل‌چه‌به‌شو کـاوه‌لکه‌مظلوم‌شی — لکه سر وشه له بارِهِ د ست بردار
مکر وطمعه‌دامکان‌په‌دارالضرب کنبې — چه‌درهم به دې مسکوك شی یادینار
تاخوږلی نن بازی لکه گـنجفه ده — زر سرخ به درنبکار ه شی پەمعیار
اتباع دنفس ضرر اری نا دا نـه — دغو لا نو پیروی ده بده چـار
کشنده ئې لا پخواشه تر مردنه — تفاوت دی دحلال و دمردار
زړه قوی بویه هر دم د بیکسا نو — دست گیری دواماندە کوی دا دار
در موندلی دی عزت پەیتیمی کنبې — اوس بەڅه کوې کـنار دمور و پلار
لکه‌لمر په کرم‌روی کړه جهان‌لاندې — نەی هندو خراسان روم و تا تار
زیاده په تواضع دهر د هیبت شی — گ دن خم اره په شان دذوالفقار
خس‌دې‌نه‌گوری‌دزانه‌په‌سپکه‌سترگه — یانصیب گوره بېر یر شی دچا یار
کەتمام پەکرم‌وسردداپام خشك‌شې — په شپوه دی د و فا بویه اصر ار
عمرتېر پەیوه‌ځای‌لکه صورت کړه — په هر لوری چه ولاړ ئې د جدار
دسبب له پر دې ووزه راشه کړه — تازه کی دقناعت په کشت و کـار
باغ‌وراغ پەهغەدم دآسمان شین‌شی — چه زا یل شی تمامی ابرو امطار
نبه‌مردان لەشرمه آب لکه‌حباب‌شی — که سیلك با ر کیبزدی په کـتف‌دبحار

هر انسان به داحسان لکه عبید وی
په خلاف ئي کاعمل گاوو حمار
ددستار په‌شان ئي تل نر سو جار پېزه
هر سړی چه‌په تندی کېږدی ستاباږ
دل بسته په‌رنګ و بولکه غنچه ئي
نه‌ئی دیر نه‌ئي درنګ نه‌ئي مدار
توری خاوری دی لېمه‌دښو څوانانو
سره لا سو نه په حنا خشت و فخار
پس له مرګه مې زنهار خپله مینه !
دا مقطع وښکه (۱) په‌لوح د مزار

«شیدا» مه کوه ارمان دښویارانو
آسوده‌دی‌خوش‌طبعان ستاپه چوار

# (۲) اخری قصیده (۱)

بیـا بیوزن شو دغمونـو پا تـرآب
دهند مځکه‌شـوه دډیر سرور مآب
نو بهار را وور تشریف وهندو بارته
دقاقم حاجت هیڅ نشته د سنجاب
یونفس لـکه مخمل بی گـلستـانه
هرګـز نه کا معاشر دراحت خواب
اعتراض‌ئي په سواد د د یار مکـره
دپیری ایام ئي نه لری شبـاب
داندوه اثرئي نشته په نهاد کښی
لور په لور هوا هوس، سازو مضراب
چه روښن په چراغان دنوبها ر شو
یعنې لری کړ ګـلونو خپل نقـا ب
سیاهی ئي په‌مثال دمهتاب شپه ده
چه نظـرو کړی‌په‌هند، په‌درست پنجاب
تامل‌په کـاروبار کښی ګـلچین نه کـا
څه حاجت نشته هر ګـز دا نتخا ب
چه‌ئي‌ویني رنګارنـګ نقش د ګـلو
ناظران کـا په زړه یاد دماني داب
دماني دموی قلـم وائی وهند ته
ورکـا څوك دروښنائي دويم‌خطاب

---

(۱) و کښه (پ)

(۲) داقصیده دهندتو ددوبی او دهند داوړی دوخت سخته ګرمی بیانوی.

چه په شاخ لکه ګل ناست شاد و خندان وی — دبلبل دعوت آخر شو مستجاب

آزرده شوه نن فاخته په شان دسرو — دګردن طوق ئې رنګ شو دخضاب

دهوا په دښته بل بهار ښکاره کا — دتوتی سبزه جامه زرین قطاب

په جلوه ئې د هر کس نشاط تازه شی — په نغمه ئې درست قفس فصل الخطاب

په خوبی دهر طاؤس خزان بهار شی — دبهار د زیبا ګلو رنګ و آب

چه خوبان کوی ګلګشت په چار چمن کښې — ورته وایی بلبلان لب لباب

نازکان دهندوستان سبز رنګونه — مکدر شی د مینا په انتساب

چه په ملائی نمایان ذرین کمر شی — ورته وایی دموی تاب اولو الالباب

لکه نور دتابان نمر مهین رنګین دی — که جامه که ئې پیشوازدی یا جلباب

استقلال دزړه فوراً یوسی له زاله — څه مجال لری رستم یا ئې سهراب

مینا لرې کړه پټه له ګوشه خپله — هیڅ ساغر نه کا په رقص کښې حجاب

په څه شان درته بیان دساز آواز کړم — وکړه ماله خپله رأیه استصواب

رهزنان دعقل ناست دی په پرده کښې — سزاوار ددې خطاب ددې القاب

هر خاطر لکه ښیښه له صافو میو — دم په دم دصفائی په اکتساب

چه اکراه دطبائعو و وت له میانه — هرګز بار و تملیک نشته په رقاب

چه سامان دعشرت وویني په سترګو — محتسب له سره هیر کا احتساب

داختیار زمام ئې و ووزی له لاسه — عاشقان ور که ناصح ته داخواب

چه آرام دبیقرار وزړونو غواړي — وآسمان ته امر وکړه دشتاب

پلیده دروان آب غبار د زړونو — کناره کیناست په طور دګرداب

صفائی هغسې اثر په خاطر وکړ — چه دسر دښمن په شمار شو داحباب

څه وه؟ څه شو خوب لیده که بیداری وه ‌ ‌ ‌ راشه و گوره د دور انقلاب

زه مشغول په دا گفتار بهار آخر شو ‌ ‌ ‌ دا گلگون و، ترصبا سبك ركاب

د تموز لمبی په هند راغلی ناگاهه ‌ ‌ ‌ د آسمان لطف بدل شو په عتاب

چه ئې سوځی په شرر د هند ارباب ‌ ‌ ‌ سکه فسان شه په دا ملك د چرخ دولاب

که بیان ورته گرمی د دې هنگام کړی ‌ ‌ ‌ د نمرو د آتش به شی له شرمه آب

د سردی اثر به څه رنګ په کښی مومې ‌ ‌ ‌ کـا ئې باد له احتراقه اجتناب

برودت نه کـا اثر په صورت باندې ‌ ‌ ‌ که حباب غوندې کړې روغ د آب سیلاب

سیاهی به ئې دخاورو دا رنګ نه وه ‌ ‌ ‌ که ئې وی ددې تحریق حد و حساب

که تری لاندې شی د هند جاذبه محکمه ‌ ‌ ‌ خس به پورته په محیط شی په پایاب

د عرق افراط داهسې جوش ئې هو نبره ‌ ‌ ‌ چه فانوس شی د عرق په آب حباب

چه افراط ددې گرمی هجوم دماشو ‌ ‌ ‌ په عذاب باندې نازل کاندې عذاب

په هر کور په هر دیار په باغ وراغ هم ‌ ‌ ‌ چا ته نه ورځی هر گز د مردن خواب

په طنین دماشو هسې بیم پیدا شی ‌ ‌ ‌ لکه صید شغا و اوری د عقاب

دز و رو باد ئې شی تنده سیلی ‌ ‌ ‌ چه هجوم په طعام و کاندې ذباب

که خیمه نعمت خانه کړی ستا په ستر گو ‌ ‌ ‌ گسسته ئې کـا فی الحال محکم طناب

دز نبور ځانه ئې و گوره غارت کړه ‌ ‌ ‌ څوك به موږی په دکان شکر ناب

په نوکر دخیل صاحب نمك خوړه نشی ‌ ‌ ‌ چه امکان اری په خوان مکلف قاب (۱)

که ئې مار که ئې گژدم دی له گرمیه ‌ ‌ ‌ گرفتار دی لکه موی په پیچ و تاب

مبتـلا پـه دا عذاب تعجب دا دی ‌ ‌ ‌ څه اضرار شی دانسان وددوا ب

---

[۱] څه امکـان لری په خوان نان و کـشکاب [اس] .

دضرر دفعه ئې ګرانه وی هرچا ته ۔۔۔ نور به څه وايم وتا ته په دا باب

کورپه کورئې طلبګارپه بنګاله شه ۔۔۔ فسونګر وی لکه مور په شوه نایاب

چه سرونه ګا بالا دهند مارو نه ۔۔۔ په ليده ئې هم طاقت دروهي هم تاب

واقعه دنخشب ياده، حکيمان کا ۔۔۔ ګوری حال دديمهتاب په اسطرلاب

د ګږدم په نيش اطلاق دمضراب وکړم ۔۔۔ چه وهل ئې کانعرې چنګ ورباب

دوباره ئې خواب په شان دمخمل نه وی ۔۔۔ چه زايل شي دچا خواب په داعقاب

صحبت ګرم شه دناز له مشت خسه ۔۔۔ که ليده شي خسخانه دالتهاب

آب پاشی که تهخانه ياپشت بام وی ۔۔۔ صراحی طاس وشوره جمله اسباب

هرګز نه کاانتفاع په هندوسان کښی ۔۔۔ په نه وزوی ځنې سرد «دروه» سراب

په داوقت ئې دآفتاب چشمه مبدأ شی ۔۔۔ که ئې رود که ئې لښتی دی يا درياب

که اطلاق دجوشان مي ور باندې وکړې ۔۔۔ تاپه داويل څوك نه بولی کذاب

نان له خپله ګوره راوړه بې قتغه ۔۔۔ هر ماهي وی که ئې خوری ګرم کباب

په داوقت هر ذره دشرر کار کا ۔۔۔ ددوزخ له شعلې کم نه دی آفتاب

خاص وعام ورته په جهر آفتاب وايی ۔۔۔ چه طلوع وکا دشپې په وقت مهتاب

حرارت کړ خا کستر مهو سينو ۔۔۔ د کشتن ترکيب موقوف کړ دسيماب

په اپستل دپيرهن ګله آرام شی ۔۔۔ بوست به اړې لکه مار کا شيخ وشاب

بال وپر ئې د ګرمی په برق سوخته شی ۔۔۔ له هوا پر بوځی په غر دمرغ دسحاب

دينبي په شان به اور بل شي په اوررو ۔۔۔ که ئې ورشی په کابل سوزنده تاب

ترآفتا به ئې تاب زيات دی خود بوهيږی ۔۔۔ په هنګام دپشه کال کښې نکته ياب

سوزنده مځکه ئې کاد بارانونو ۔۔۔ د شبنم په شان له ابره انجذاب

چه له ناره ئې آسمان دواسپه تازشي | په ماهي کرائې وکړ ارتکاب
چه کړه ئې لکه برق په باران نه خي | داصفت ئې هرګز مه بوله عجاب
دامکان له دايري وي تل خارجه | ازاله داستسقا په تند شراب
آميخته تر آتش ګرم آب په رنګ کښې | دتصوير عالم ئې کړ په اضطراب
که آرزو دسردي نظم کړم عالمه | قلمي ئې کا زما دراي صواب
دسپين يخ تخته کاغذ شي ده جزو | يا انوار سهيلي شي دا کتاب
مطالع ئې دمضمون اهل دا نش وي | انديشه به ئې ونه کا استعجاب
چه تر اوسه ئې اثر نشته حيران يم | وايه څه شو زمستان خانه خراب
تل «دروه» آب وهوا او زه سپين يخ هم | باغ وراغ دشت وکهسار طرفه شاداب

ياد لره په خپل خاطر په يادئي يابه
«شيدا وسپاره په قصر دالطناب»

# مناقب

## (۱) نعت

اې په فرق د آدم تاجه | د تمام عالم سراجه
ته د هر نعت لايق يې | بې نظير دخلايق يې
چه نظير نه اري څکه | ستاسايه نه وه په مزکه
چه سبب دافلاک ته ئې | مخاطب په لولاک ته ئې
ته سيد د مرسلين ئې | رحمة للعالمين ئې

---

[۱] شيدا نور قبل وقال مه کړه په داباب [اس]

چه نظر په کهکشان کړي — کهشان سبز ریحان کړي
په رفعت که برین عرش دی — نسبت تا ته پائین فرش دی(۱)
طور که هرڅو بر ترین دی — ستا په در فرو دین دی
دا آستان بس معلی دی — په لوی شان متجلی دی
تا چه یور ته کړه غبور ره — لکه صبح سپینه تو ره
منهزم د دین د ښمن شو — لکه شب سپر افگن شو
کهر باچه دارنګ زرد دی — مگر پیښ ستا په نبرد دی
لاڼي پروت دی بیم په زړه کښې — چه وابنه نیسی په خوله کښې
آسمان څه چه آسمانو نه — وایی قل په ارمانونه
کاشکی موز بسیط دخاك وی — چه مدفن د گنج پاك وی
زمین بوس ددې آستان دی — ځکه خم سبز آسمان دی
قاف که لوی دی په جهان کښې — ریزه سنګ دی په آستان کښې
ستا سخا ده که حیا ده — ډیره زیاته تر دریاده
که مشهور (۱) ابر نیسان شو — په عالم گهر افشان شو
تر سخا دی منفعل دی — عرق ریز د دریا دل دی
خاص د قرب په حاصل یې — په عجب وصال واصل یې
ترمیان موی کله گنجان دی — څه امکان دانس وجان دی
رسی څوك ودی آستان ته — په یو دم سبز آسمان ته
جلوه کړ په څه تمثیل شی — له حیا به رود نیل شی

[۱] مشهود [اس]

که نظر پرې د آفتاب شی (۱) — د آفتاب چشمه به آب شی
پاشیده به ئې په خاك شی — خاك پاك به ئې نمناك شی
غفران بخره د جدی شه (۲) — خوشحالی ئې سرمدی شه
په دا ژ به کښې فصاح دی — په دا شان د تا مداح دی
«په هر رنگ محمد (ص) ستایه — خو یو خدای ورته مه وایه
که هر څو وی پیشه مدحه — نر دانه ځی پیشه مدحه
صلواة زیات تر عدده — پر تا باندی محمده!
ستا په آل په صحابه وؤ
ستا پر پاکو همخوا به وؤ

## (۲) منقبت

### د ابوبکر صدیق (رض)

اوس ممدوح زما صدیق دی — چه فطرت ئې د تصدیق دی
بل سر ور د صحابه دی — دی بهتر د صحابه دی
په زمره د صادقین کښې — په کافه د سابقین کښې
لکه صبح صادق تر دی — د سبق د رخشان نمر دی
که صفائې له خاطره — ذره قدر شی ظاهر
منفعل به خو د آفتاب شی — د شبنم غوندی به آب شی
مستفیض په خاص نلقین دی — تمامی حق الیقین دی

[۱] که نظر دی په آفتاب شی [ح]
[۲] مطلب ئې خپل جد خوشحال خان دی .

چه په غار کښې ملازم ؤ
هغه پاك جناب نا يـم و
راغي مار مقدس گنج ته
ده صورت و نيو ه رنج ته
د حضرت تر سر فدا ؤ
له هر چا بهتر په دا ؤ
همتي شان په خداي قبول دي
چه ثاني د پاك رسول دي
رهنما دي د دې لاري
گوره «اذهمافي الغار (۱)
د اقايق جناب اخص دي
خو دناطق په دا باب نص دي
تمام شك د خاطر کم کره
بنه نظر په «اتقيکم» کره
راشه گوره «والذينه»
معه‌صاحب يـقـيـنـه

هر نبي تر ده بهتر دي
پس له‌دوي خير البشر دي

## (۵) منقبت

### د حضرت عمر (رض)

اوس به کرم دعمر (رض) مدحه
تل په چشم و په‌سر مدحه
بلند بانگ يې لکه نمر شو
چه اسلام پرې منور شو
عجب شان د دره داردي
چه ثاني ديـار غار دي
چه عمر دره بالا کره
آسمان خمه‌ور تهملا کره
څه اوصاف ئې دا نصاف کرم
يائې شرح د‌ه‌صاف کرم
رخشان نمر دعدالت ؤ
په دوران ئې ورك ظلمت ؤ
ديو ئې کلمه همم نبرد و
کيولي تل دميدان گرد و

---

[۱] دا بيت دخوشحال ... ن زدی .

همیشه به صف جنگو نه | بیا په هر طرف جنگو نه
ده وهل په سپینه تورو | داقصه ده خو ده مشهوره
فتح یاب د هر قلاع شو | ظفر یاب جهان مطاع شو (۱)
لکه صبح جهان گیرو | مز که څه چه آسمان گیرو
د فتنی په سر تیر ؤ | په گردش د فلك سرو
څه عجب که فتنه پریبز دی | لکه برگ تراوسه ریبزدی
«اشداء» گوره باری | ورسره «علی الکفار»
دده شان تری مستفاد دی | په دینی تعصب یاد دی
په صدیق (رض) پسی عمر دی (رض) | مصاحب د پیغمبر دی

## (٤) منقبت

### د حضرت عثمان (رض)

اوس به مدحه دعثمان کړم | چه سامع مزکه آسمان کړم
جمله نور، تمام انوار و | ذوالنورین آسمان وارو
که ئي شرم که ئي جود دی | ابز په شمع کښي موجود دی
چه مدام ئي رخسار تر وی | تل ئي صرف دسیم وزر دی
چه ولی ئي قدم تاج کا | خپل قدم دعالم تاج کا
افتخار د اولیا دی | په کردار د انبیا دی
مصاحب د محمد (ص) دی | مقرب دپاك احمد دی
لوی ئي شان لوی ئي آستان دی | چه جامع د درست قرآن دی

---

(۱) دهر عالم ددین اقطاع شو (پ)؛

«رحماء» ته ئي نظر کړه — «بينهم» تمام ازبر کړه (۱)
دلته‌دی دحق مراد دی — په‌قرآن کښې‌دا رنګ‌يا‌د‌دی
زده کړه دا :- پس له‌عمره (رض)
په امت کښې عثمان (رض) غوره

## (٥) منقبت

### دحضرت علی کرم الله وجهه

اوس په‌مدحه‌دعلی (رض) يم — چه فدا د دی ولی يم
منتها د سلا سل دی — مقتدا د هر واصل دی
تما می د حق رضا دی — سزا وار د ارتضا دی
په ميدان کوه د شکوه ؤ — ذوالفقاره تيغ ئي کوه ؤ
نما يان په جهان باندی — مخ دمز کی ئي کړ لاندی
چه قاهر به په اژدر شو — په سوراخ‌دمور وار درشو
علی هسې غران شير ؤ — په ميدان کښې‌دران شيرو
چه تر غوز وئي دا غريو شو — پوشيده تر اوسه ديو شو
دد ي هسې برق له تابه — نهنګ نه وزی له آبه
شجاعت ئي مستثنا ؤ — خره زړه لکه ميناؤ
چه به سور په‌خپل دلدل شو — په هراور به تزلزل شو
تا به وی د روم فوځونه — لکه سيند وهی موجونه
شهوار که ئي يکران ؤ — په‌حيرت ورته دوران ؤ

(۱) د «رحماء بينهم» آية‌ته اشاره‌ده .

«تر یهم رکعا» او له «سجداً» دزړه په خلمه
چه عابد دخپل معبو دو څه رکوع څه ئې سجو دو

په عثمان (رض) پسې علي (رض) دی
په اصحاب کښې منجلی دی

## (٦) منقبت

### دحضرت بهاؤ الدین نقشبند
### قدس الله سره العزیز

ښه عامل زما په پند شه آستان بوس د نقشبند شه
که له قدره ئې آگاه شی تل به خاك ددې درگاه شي
چه نظر ور ته اژ درگا گنج ئې زار ترخاك درگا
که د نمر په شان انسان ته انسان څه تمام جهان نه
په یوه ستر گه ناظر شي بحرو بر به کل باهر شي
په جلال ئې آسمان پر دی په جمال ئې آستان نمر دی(۱)
فایق تر په اولیا کښې لکه موج په دریا کښې
چه یاقوت ئې هر خارادی بد خشان د بخارا دی

## ۷- منقبت

### دشیخ احمد مجدد الف ثانی قدس الله سره العزیز

چه سرهند ئې پاك مولد دی مجدد د شیخ احمد دی
په تجدید ئې عالم ستایی د ا منصب ور باندي ښایی

---

(۱) آستان غردی (پ)

په وجو دئې دین تا زه شو — دین تا زه ، یقین تا زه شو
لوی امام د اولیا دی — هم وارث د انبیا دی
که اقطاب دی یا افراد دی — بهره مند په د ارشاد دی
هر بو حرف چه مقطع دی — په اسرار ئې مطلع دی
په جذ به غرونه ارزان کا — په سلوك ئې خراما ن کا
لبز نگاه که ئې په خاك شی — هغه دم به خاك افلاك شی
په آسمان که ئې نظر شی — درست آسمان به رخشان نمر شی
کمالات د موقت هم — امامت و خلافت هم
هیڅ څوك نه دی جلی دی — په نصیب د دې ولی دی

په علیا ولایت خاص دی
په کبری ئې اختصاص دی

## ۸ـمنقبت

دحضرت پیر ومرشد قدس الله سره الاقدس

لکه نمر په جهان سلوم دی(۱) — زما پیر غلام معصوم دی
عجب شاه د ولایت دی — بلکه ماه د هدایت دی
په مثال شسته د امان ؤ — له غبار ه په امان و
هسی لا ړ شو له خاکدانه — لکه غشی له میدانه
تمام نور لکه آفتاب و — غوث و قطب د اقطاب و
د تشبیه له داغه خلاص و — د تنزیه په طیران خاص و

[۱] معلوم دی [اس]

په عروج د خیال ممتاز ؤ | د نزول په حال ممتاز و
تر قدم ئې آسمان تحت ؤ | مشاهد د ذات بحت و
شریعت ئې په بارګاه کښې | طریقت ئې په نګاه کښې

## ۹ ـ نقشبندیه سلسله

کړم په اسم دالله شروع د قال | چه بااله رحمان، رحیم شي متعال
پس له دې په محمد صلوٰة وایم | بیا دده پر هم ګي اصحاب وآل
سلسله دنقشبند پس له دې وار وه | چه په سمع ئې حاصل شي درته حال
پیر مې شاه دولایت غلام معصوم دی | مقتدا د زمانې قطب الرجال
دده پیر صبغته الله دی هم ئې جد دی | چه قیوم ؤ، دخپل عصر په کمال
دقیوم پیر و پدر خواجه معصوم دی | پیروی ئې کا اقطاب، اوتاد، ابدال
دده پیر دی شیخ احمد هم ئې پدر دی | چه دالف مجد د کړ ذوالجلال
دده پیر عبدالباقي قطب الاقطاب دی | رهنما داو لیا بلند احوال
دده پیر امکنکي خواجه دی پوره شه | چه دریاب دمعرفت دی مالامال
دده پیر خواجه درویش صاحب صفا دی | ترانوار پورې ئې نور ذره مثال
محمد زاهد ولي مرشد دده دی | چه همیشه ئې دی له حق سره وصال
دده پیر عبیدالله خواجه احرار دی | پاس په فرق داولیا دده اظلال
دی سیراب په دانعمت دشرخ یعقوب کړ | جام ابریز لري د فقر په ذلال
دده پیر بزرګ خواجه نقشبند دی | ترقیامته ئې نور نه لري زوال
دده پیر امیر کلال منیر آفتاب دی | په مرآت کښې دصفا لکه تمثال

دامیرهادی خواجه محمد بابادی | چه شریف اسم ئې دی په کمال دال
ده ته کړی هدایت خواجه علی دی | چه شهباز دی دعرفان په پرو بال
دی خوشنودخواجه محمودیه هدایت کړ | دعا لی مقام سیاه لکه شمال
دده جام خواجه عارف دی لبریز کړی | دهغو میو ساقی چه دی حلال
دی محظوظ عبدالخالق په معرفت کړ | په دوران کښې به ؤ کم دده مثال
دده بزم منوو خواجه یوسف کړ | په انوار ئې رخشنده دی پاك جمال
بوعلی په حق مشغول خواجه یوسف کړ | چه لری کثیر علوم عظیم اشغال
ده حاصل کړ داقسمت له بوالقاسمه | بهر هند ئې اولیا دی په نوال
دی کاسب ددې نسبت ابوالحسن کړ | ولایت ئې د تقلید کا استقبال
دی عارف دبایزید په توجه شو | زړونه ویښځی دعرفان په پاك سلسال
دسید امام جعفر دی مقتدی دی | دفترونه ئې په وصف کښې اجمال
دخپل جدنعمت قاسم ور کړ سیدته | مستدل ئې اولیا دی په خصال
دفارس سلمان قاسم ته ار شادو کړ | صحابی دپیغمبر (ص) دی نیك اعمال
دمونډلی دا دولت دی له صدیقه | په جمله اصحاب ئې فضل دی مازال
صدیق خاص په ولایت رسو الله (ص) کړ | چه ئې نشته په عالم دفضل سیال

# قطعات

## (۱)

اهل هند زما په ژبه نه پوهیږی | ورسره اهل ایران و تورانی
پښتانه دروه محرومدی له دې فنه | خبر نه دی په بدیع په معانی

هر مضمون مي لکه گنج پوشیده پروت دی | دسطور ما ران ئي کا نگهبا نی
دمر أت په شان مي کا صفا د طبع | هر نفس په خپل مضمون کښې حیرانی
مستعدیم دفارسي په قیل وقال کښې | په د غه لسا ن وی دا نکته دا نــی
سلا ست به و معلوم ز ما د طبعي | په هر ځای به وه زما شعر خوانی
تر وقوع دواقعي علاج سابق وی | نفع نه کا ا و س ز ما پښېما نی
په تدوین د خپل ز بان ځکه نادم یم | چه و نشو ه په محل گل افشا نی

احتمال به نشي ساقط د فضو لی
که ته و کړې د «شید ا» ز بان دا نی

(۲)

لوی عبرت به کا حاصل له دې کلامه | دا نایان چه د مغل دیــښتــ نه دی
درا نه هم په سپکو سپك دی سپك خو پر یږده | په درنو با ندې درا نه سپك ږ درانده دی
د سیلیو په دوش کښېږده لوی لوی غرونه | ځی به هسې تر بار لاندې گو یا نه دی
تر فلیــبان لاندې غور ز نـگـ نشي کولی | دفیلانو حلقې گوره په پا نه دی ( ۱ )

(۳)

محبت غوا ړه «دروه» له سمن رو یه | سیا هان د هند خبر نه دی له مینې
بې مهرې دهری شېې مهر دور ځې | ته هم پس په خپلو ستر گو شیداو ینې

(٤)

زمانې هغه کسان دی عزیز کړی | چه مرجع د شرارت دی هم مآب
دبادشاه تعظیم سایه دبادشاه نه کا | استاد ه که ئي عالم وی په جنـا ب

---

( ۱ ) په پا نه د ی ( پ )

ئل دغلە تەوی ولاړه خپاه سیو ره چەهمیش ئې پە بدی وی ارتکاب

(٥)

هغەوقت دتاهل حلا وت گو ره چه حاجت دصابونە اودسر غوړ شی
تیسری ئې وی مشکل لەتنگ دستە زن وشوی سرەپەجنگ آوازئې لوړ شی
شو کیدلې زیرەمرد ووځی لە کوره پەتندی دښځی مات محکم لوړ شی
کە ئې غم دتعلق ترغوز و تیر کړ وچې شگې بەصورت دلاندەخوړ شی
یکښې نشته بیغمی دآزادی کەجاگیر دې سمەسوات وباجوړ شی

(٦)

دیانت بەدسارق نەوی بې وجه داعالم لەدې هنره «شیدا» دوردی
تورەشپەبەخداحسان پەمشعلچی کا پتول ئې دمشعل کلە مقدوردی

(٧)

دا نکتە شوە رامعلومەپس لەغوره موافق شی مخالف دقوت پە طمعه
آب ونار ئې پەمحفل کښې جمع وینم خوارې ترە لقمەپەخوان کښې شمعه

(٨)

نف پەریش دروافض هم ئې بەزیست شه پەداباب لە «شیدا» واوره اتوه ئې
تقیه دخپل مذهب بولی واجبه یو وبل تەسره و انې یتوه ئې
پتول دغلو عبادت وارەدزدان دی دادردان کە چیرتەموهې ستوه ئې

(٩)

داناپاك واچوه زړو تنا ره تــه رافضی دضلالت نجس خو شوی دی
بل علاج ئې هر گز نشته پې سوختنه طهارت ئې نا ممکن پەشست وشودی

پەسیلاب ئې دسرو ویښوویرانه کړه کەئې کلی کەمحلت کەئې ورشوی دی
دوارەبرېتئې دی پەشان دلویودارو کەراواخلې تېره توزه خر بیشوی دی

(۱۰)

نورئې څەوایم وتاته له امشا له داسګان خرس وخوګان ګنهیه ګیه
چه بنیادئې یاتەنشی پەجهان کښې پەدیار د روا فض شه بلا ګډه

(۱۱)

کېږی تل پەسیم وزرمحال کارونه دشیداپه داو یلو باورو کړه
نوی سر کاندې پیداچەشی بې سره پەاحوال دشمع څەخو نظر وکړه

(۱۲)

دمزاج پەتلون کښې مردمعیوب شی شمع وار مشه زنها ر دمو مو پوزه
اعتمادئې پەګرمی دصحبت نشته دآفتاب پەطلوع نوی بزم افروزه

(۱۳)

څەبیان کړم برودت داوبو چاته خصوصاً چەپه هنګام داوبو یخ شی
کەپەزرەئې چېرې خیال دا ثر تېر کړ پەمعده کښې بەلرزان دسیب زنخ شی
کەآسمان ګا پەلیندە دجفا غشی پکښې کله بەددرې پەمقدار بنخ شی
پەتاثیرئې دسر دی سمیرغ وفیل هم دبدن پەضعیفی موورو ملخ شی
لکەعکس دآتش پەآب کښې وینی پەسردی کښې ئې داهسې سور دوزخ شی

(۱٤)

چەاوبەشی صف آرا پەداخله کښې پەسپین مخ می ئی ګمان کیږی دتورو
کەلەفوج سرەپرې ګډشجاع رستم شی زربەواورې پەسیستان چیغی دبورو

(۱۵)

ددوران ساقي عجب سفله پر وردي — چه زاغان ئي سيه مست په هر لوور گرزي
ببلان په قفس بندد صيا د و يـنم — تيوسان له خوشحا لي په هواورزي
استخوان ئي كړ «شيدا» دهما برخه — مكسان په شهر ينيو غورزي پر زي

(۱٦)

ورته و كړم څه صفت در سا فكر — چه غاير شي داشعار په باريكي كنبي
هرمغلق ئي په نسبت گويا واضح دي — مومي موى لكه شانه په تاريكي كنبي

(۱۷)

نه مر دان لري همت دلويو غرونو — په سختي كنبي بهخپل سر كله فروكا
كه رستم ورته ويل كا په تو ندي — په جواب كنبي ئي خبره كله وروكا

(۱۸)

چه رښتيائي په كلام كنبي «شيدا» نه وي — انفعال كا خاموشي په انجمن كنبي
دسو سن دگل غنچه گوره سا كته — چه ئي ژبه يوه نه ده په دهن كنبي

(۱۹)

كه تو تي دښه فولاد په بيضه ناست وي — آئينه به څني كله شي پيدا
دقهقي د ډار اثر په غنچه نه كا — خندوي ئي په گلشن باد صبا
دگرداب آسيا دانه دچا ميده كړه — كه غافل ئي دگر دش وي اوي دريا
استعداد وي په ضرور د كار كنانو — په دا باب بو يه نظر د كار فرما

(۲۰)

دصفا اعلى صا حب دا ستعداد وي — هيڅ عجب نه دي ددوي خرق عادات
راښه گوره دشماع بنكلي خطو نه — نه كاغذ نه ئي قلم نه ئي دوات

(۲۱)

هغه کس بەرافضي يا به هندو وی شقاوت چەئي ترتلمويه اغوا شی
سفاهت وته ئي وگوري عاامه امتحان چه ئي په سويه يا په غواشي

(۲۲)

هسي چاري کړي پرمااماره نفسه! چه ليد لی هيچا نه دی له خنا سه
ستاو جنگ وتەا کبر جها دوايەشی د کندي تر کا فر څان بوله دياسه
داسلام پەحلاوت بەهاه پوه شم که نجات مي‌شي روزي د تاله لاسه

(۲۳)

چەليده يکښي ضعيف ددين ترويج شي اهل هند دي‌پەمثال کښي اوبه خري
چه کثرت پکښي پيدا دروافض شو قازورات ددي‌اوبوشوی گنکه خري
څوك چەسب کاد يا کانو ورتەوايه چەيه خو له لکه خفاش مرداره خري
يومز ري دتسنن ورته کا فی دی داسگان که پەهر لوردی‌شخري‌شخري

(۲٤)

دغدار سره لازمه بي شرمي ده يەشعله کښي ئي مثال دی جلوه گر
کورو کلی ئي ايمن شی په گرمی لغه يسه نيك وبد کا خاکستر
لەدي هسي فعله هيڅ منفعل نه وی په عرق ئي هرگز نشی رخسار تر

(۲٥)

يويەسل اوسل پەهيڅ ضرب المثل دی افاده ئي په عالم کښي ده مشهوره
پەيوه شعله دبرق خرمن سوخته شی ددانو حاصل ئي څه دی له وفوره
هراس نه کانەي‌اصلا دبريښ له برقه . برابه وگوره دانيا ددامي تروره

(۲٦)

داعالم بههیخ مطیع نکړی بې طمعې شپرېنی کهدخاق ورره در څخه ده
پهشدتد باغبان کاله تو تیان دروهی چه میوه ئې د اشجار وینی پخه ده
پهآستان ئې دساحل غواصان وینی خود خبرئې د محیط وضعه تړخه ده

( ۲۷ )

دائیم مېلمه پهشان دوږ یوستر گو دفا قو له لا سه داغ وخوری په داغ
په کښې بوی دطعام نهوی تمام آب وی چهد ستر گو په دود و کا استفراغ

(۲۸)

ده مې وضع لکه غر رضافي امر اعتراض مې پهحال مه کوه حماره!
پهنسبت مې دنخوت گردن کشي ده تواضع نهمې قیام دتعظیم شماره

(۲۹)

یو دلیر کا ددښمن جمع پریشانه بر ېښوی دستور وغاښې هلالپهتوره
پهخو ورځې ئې زایل تمام نقصان شي پهوار وار کاندې حاصل کمالپهتوره

(۳۰)

انتظام د کارو باروایه برهم کا چهدجاه په علم خاص چېرته نامردوی
لور پهلور ئې دظلمت اثر پیداشي کهپهسپین میدان کښې هسك دمځکي گردوی
گهئې خوان پهن پهمځکهفلكوارشي یودوه نانهئې پريا بښي گرموسردوی
په گو د رد بېنې پښه نېزدی له بیمه دبیرېپهطلب گرځيرنگ ئې زردوی

(۳۱)

په طلوع ئې لکه لمرجهانروشنشي چهپهاوج ئې ددولت چېرتهمردانوی
پهرنما کښې ئې جوړ بېړی وران کارونه همېشه په عا لمو نو ز ر افشا ن وی
مسخر کاند ي عا لم په سپینه توره مهیائې تل پهخوان کښې گرم نان وی

شگفته ئې وی جبین روشن ئې طبع — پر شیده د زمانې ور ته عیان وی
د « شیدا » په زمانه عیب هنر شو
کشیده ئې په داباب څه خوزبان وی

(۳۲)

که نامرد په خاورم آسمان کښې نا بست وی — مقابل که ئې بوڅ کی چېری خوزی
زرئې وتښتی له بیمه گوله ز بېر ه — نرئې ستر کما که نامرو رخنی سوزی

(۳۳)

راشه غوز کړه د « شیدا » په دا ویاو — ساده گی تر تکلف گڼه بهتر ه
که نامه خپله انشا کا بس رنگینه — د یاقوت رقم ئې وزی له مسطره
درنگین ساده انشا په ثبت مه کړه — د هیڅا په نزد په نسه وی معتبره

(۳۴)

او ر بدلی مې داپند دی له هو شمند ه — څه حاصل به په محنت کړې ذر له ر بگه
که خپل سرور ته نغری کړې ممکن نه دی — چه څه وخورې د مساك سړی له ربگه

(۳۵)

چه دانه ئې دد هقان په نصیب نه وی — د آسیاد سنگ شر ر په خرمن برق شی
تعجب مه کړه په حال د تېره بختو — شناور که ئې په موج د سراب غرق شی

(۳۶)

چه د « روم » په سیمه ور شی ور ته گوره — تورې څو کې د کهسار و واورې سپینې
زمانه چه ستا په کام وی باور و کړه — په دا شان ئې صبح و شام وی که ئې وینې
د بنا یست بیان ئې څه کوم و تا ته — لکه ستر گې د دلبر و وی دور بینې

(۳۷)

دغنی کشمیری صفت:

ته زما په دا و یلو باور وکړه　　د اشعار په بحر کړی ما گذر دی
د غنی غزل می واړه یکدست و لید　　ته به داوائي چه سد سکندر دی(۱)

# متفرقات

## تاریخونه

دمحمود خان مړینه:

خود به پو هیږي کـه خرد مند ئي　　بده بـلا وه غـم د د وستا نو
چه محمو د خان د ی له د نیا تللی　　غمونـه قوت د ی دغمـخور انـو
چه بیلتـا نه ئـي له ډیـره نـاوه　　بلکړی او ردی په آشنـا یـا نو
تاریخ ئی داکـړه سو یه خـاطره !　　بیلتو ن امبه ده په ښو یـا را نو

❀ ❀ ❀

فلـك کجرو دی آ ثـار ئـی و یـنی　　شغـال چه ظلم په زمری کـاندي
کلـه عـجب و ی لـه تعجـبه　　که په ژړا کښی چېړي و خا ندي
تـاریخ دا رنـگ خرد بیا ن کـړ　　داخان شهید دی آه په حق باندي

دمیان عمر صاحب مړینه:

دمیان په دردوغم کښی　　ناله ډیره شوه هم آه
وا یه دا عمـر ولـی　　ور سره رحمت الله
علیه ورسره ضم کړه　　په تـاریخ به شی آگاه

(۱) پدسکندر دی (اس)

میان عمر پەخپل دوران کښې | چه کشاده ئې دفیض باب ؤ
شاه وګدا ئې پە درحاضر و و | مرجع د خلقو عالم ماب ؤ
تاریخ ئې دادې درحلت واوره | «شیخ اجل ؤ قطب اقطاب ؤ»

## دخوشحال مړینه

دخوشحال پەجدائی کښې باورو کړه | خستەزړه زما کباب وآه مې سیخ دی
چەروزی ئې شهادت شو پەځوانی کښې | نور پە کور دشهیدځوان شەدا تاریخ دی (۱)

## دواقعې تاریخ

پښتنا نـه د کـتـهپر هتز لز ل دی | که هرڅو و ولـکه غرقوی بنیا د
چه بر کی‌او ایرانی پەیوه ځای شول | منتشر ئې پە دیار کښې شو بیداد
و تاریخ ته ئې حیران د واقعات وم | راته وویل‌خپل رأی «عظیم فساد»

## دسرفراز خان مړینه

تا چه و کړ انتقال سر فراز خانه ! | ګرفتار پەدرد پر اندوه پەدرد پر غموم یم
پە هر بزم کښې را یاد د تا محفل شی | پە ژړا کرم ستر ګی سری دشمع موم یم
کە مې نەوای‌سر د آهو نەژوندون ګرانؤ | هسې سوی دفرا ق باد سمو م یم
پە هستیـ بە نشم خلاص لەدې سختیـ | پەنـګین کښې دعقیق کـندلی نوم یم
دې تاریخ و ته حیران ستا درحلت وم | خستەزړه وما تەروی‌زه «مغموم یم»

۱۱۷۶ ه



---

(۱) خوشحال خان دسعدالله زوی اودشیدا وراره او دپښتو ژبې شاعرؤ

هېرمې حلاوت كړ د دنياستايه ماتم كښې     تا چه رحلت وكړ له دنيا سرفراز خانه
پا ته نش جسد شوم په شماره د مرد گانو     څرنګ به ژوندی وم ته لاړې څما جانه
فال دی دغفران دې چه القامی په زړه وشوه     ای ته جنتی شه خپل تاريخ واوره له مانه

دپلار مړینه

چه والد می ارتحال وكړ     ځای ئی جنت شه دنیا زندان وه
تاريخ دا رنګ د رحلت ووې     خرد وما ته میاشت دشعبان وه
۱۱۸۳ھ



غم به تر عمره د خپل والد كړم     خندا می پر ښوه ژړا كوم زه
سال د رحلت می له مانه واوره     «بهشت ئی ځای شه دعا كوم زه»

دحافظ رحمت خان مړینه

په میدان چه حافظ جیو پر یووت شهید شو     کشنده ئی په رحلت کښې شه عجول
استفسار کړ د تاریخ کاندې څوك وایه     چه یو کسال و دقا تلو ، دمقتول

دورونو مړینه

چه فتح ، او الله نور له دنیا ولاړل     په غمونو کښې ئی فرق تر میاشتی کم
په هر چا ؤ رحلت سخت ددواړو رونو     په فراق کښې ئې نالان و اوی وکم
تأمل ئې په بیان د تاریخ وشه     را ته ووې زړه آها د قلوب غم
۱۱۹۱ ھ

وفات میر معصوم

بود تا معصوم ثانی چون قیوم     میتوان گفتن مجد د بیگمان
بود احیاء العلوم ظاهری     علم باطن را بجسم اندر روان

(۳۷)

دغني کشميري صفت:

ته زما په دا و يلو بـاور وكړه    د اشعار په بحر كړی ما گذر دی
د غني غزل مې واوره يكدست و ليد    ته به داوائې چه سد سكندر دی(۱)

# متفرقات

## تاريخونه

دمحمود خان مرينه:

خود به پو هيږي كــه خرد مند ئې    بد ه بــلا و ه غــم د د و ستـا نو
چه محمو د خا ن د ی له د نيا تللی    غمو نــه قوت د ی دغمــخو ر انــو
چه بيلتـا نه ئــې له ډيــر ه تـاوه    بلكړی او ردی په آشنـا يـا نو
تاريخ ئی داكړه سو يه خـاطره !    بيلتو ن لمبه د ه په ښو يـا را نو

❀ ❀ ❀

فلك كجرو دی آ ثــار ئــی و ينی    شغـال چه ظلم په زمری كـاندي
كلــه عـجب و ی لــه تعجــبه    كه په ژړا كښی چپړي و خا ندي
تــاريــخ دا رنـگ خرد بيا ن كړ    داخان شهيد دی آه په حق باندي

دميان عمر صاحب مرينه:

دميان په دردوغم كښی .    ناله د پر ه شو ه هم آه
وا يه دا عمــر و لــی    و ر سر ه ر حمت الله
عليه ورسره ضم كړه    په تــاريخ به شی آ گاه

(۱) پدسكندر دی (اسن)